# شهید منصور

## د افغان مقاومت نوښتګره څېره

خپلواک

هـره ټـولنیزه پدپـده، ډلـه، ګونـد یاپاڅون درانه ټولنیز بدلونونه را مېنځ ته کوي او د دې ترڅنګ په خپل جریان کې رجال هم زیږوي. که موږ تاریخ ته پام واړوو، نو په نا مسلمانو ټولنو کې هم د دې ګڼ مثالونه شته، لکه د سکندر په اړه چې هیڅ یوناني فکر نه کاوه چې د لومړي "فلیپ" نه وروسته به د سکندر مقدوني غوندي هڅاند اتل دیونانیانو او مقدونیانو په برخه شي او نه هم چا فکر کاوه چې له "سقراط" نه وروسته به د هغه ځاي "افلاطون" نیسي او یوناني فلسفه او افکار به نه یواځې ژوندي ساتي، بلکې نوی رنګ او ارتقا به ورکوي.

بل خوا په مسلمانانو کې له معاویه رضی الله عنه وروسته چا فکر نه کاوه چې عمر ابن عبد العزیز به پیدا کیږي او نه هم چا فکر کاوه چې په عباسیانو کې به هارون رشید پیدا کیږي. نه هم چا فکر کاوه چې له امام ابو حنیفه رحمه الله وروسته به د هغه له شاګرد ابویوسف نه قاضي الأمة جوړیږي.

خو د زماني چاڼ ضعف او قوت، حسن او بد رنګي، کینه او نفرت دواړه زیږوي.

د ۲۰مې او ۲۱مې پیړۍ د امیر المومنین ملا محمد عمر رحمه الله نابغه شخصیت او عظیم المرتبة هستي چې یو حرکت یې تخلیق کړ او دیوې سترې باغچې زړي یې وکرل. دهغه په رحلت د دې باغ دمالیاري تصور هم ممتنع و. خو الله د هغه په رحلت د زماني پر غلبیل بیا سپک او درانه وچڼل؛ چا د شخصي خواهشاتو په بدل کې د ټول طالب غورځنګ ستنو ته لتې ورکولې خو بل خوا د کایناتو رب د زماني منصور په خپل نصرت د دې ور کړ. چې همدا کشتۍ یې نه یواځې له غرقیدو بچ کړه بلکې د ارتقا نا لیدلیو ساحلونو ته یې نږدې کړه او د همدې متانت په بدله کې یې د خپل وجود غوښې او هډوکې پرې کباب کړل.

د شهید امیر المومنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله نوښتګر او انعام بښونکی شخصیت د طالب غورځنګ په تاریخ او فلسفه کې یو ځانګړی باب و. هغه نه یوازي د خپل مرحوم قاید کاروان همداسې ګړندی وساته، بلکې دې کاروان ته یې لاره نوره هم رڼا او روښانه کړه او طالب غورځنګ یې په حساس وخت او حساسه مرحله کې له سختو متوقع چیلینجونو وژغوری.

هغه په طالب غورځنګ او امریکا ضد مقاومت کې د بریالۍ جګړې ترڅنګ د بریالی سیاست او دیپلوماسي بنسټ کیښود.

څلور ستر قایدانه صلاحیتونه ډیر کم په یوه شخص کې جمع کیږي: حلم، شجاعت، جوادت او غوره تدبیر. شهید منصور رحمه الله پر یوه وخت د اڅلور واړه صفات لرل. منصور ر رحمه الله هغه مخالف ته هم کورته ورته چې دی به یې په بدو نومونو ښکانځه؛ هغه به تل د سختو پیښو او خطرونو پر وخت ارام او مطمئن ښکاریده او ټولې شورا ته به یې ویل چې تاسو ځانونه وساتئ زما د مرګ او اسارت هیڅ فکر مکوئ! هغه به مجاهدته د خپلې خولې ګوله ور نیمی کوله او

د شهیدانو کورنیو او یتیمانو ته یې جلا مالي بودیجه ساتله. منصور رحمه الله د تدبیر او عمیق فکر اندازه هغه چا ته معلومیږي چې هغه یې د نړیوالو روابطو او مهمو داخلي پریکړو پروخت لیدلی و. د هغه د تدبیر او پلان گذاري پرمټ په سختو حالاتو کې د طالب غورځنګ ځواک او یوالي وساتل شو او د داعش غوندي فتنه یې ۸۰ فیصده په نطفه کې خنثا کړه.

د طالب غورځنګ دغه د بخت ستوری په داسي وخت کې وځلید چې په سیمه، نړۍ او داخل کې د طالب غورځنګ د خپل منځي تقسیم، کمزوري کولو او له منځه وړلو ته په لویه پیمانه استخباراتي اتحادونه شوي و، خو شهید منصور هم دغه ستر اتحادونه په خپل تدبیر ناکامه او کمزوري کړل.

د یو چا د شخصیت لوړوالی او ټیټوالی د هغه په مخالفینو او ملګرو هم پیژندل کیږي!

د منصور سره مخالفت لرونکې د دې وړ وو چې مخالفت یې ورسره کړ ای وای، که سړی د قیق نظر وکړي، نو په طالب غورځنګ کې تر اعتراض لاندي او له پخوا نه متنازعه اشخاصو د منصور رحمه الله سره مخالفت کاوه او ټولو سترو علماوو، نیکو اشخاصو او افرادو هغه ته د بیعت کلک لاس ورکړ، چې دا د هغه د لوړ شخصیت او حقانیت ښکاره دلیل دی.

منصور صیب د ښې سابقې، دروند دیني او سیاسي شخصیت په لرلو سره په روان مقاومت او طالب غورځنګ کې بې شماره کارنامې لري، چې څو بارزې کارنامې یې د بیلګې په توګه راوړم:

الف – د کامیابه سیاست او موثرې جګړې په یوه وخت امتزاج یې ممکن کړ.

ب – د نړۍ په کچه یې د طالب دیپلوماسي معاصر بنیاد کیښود.

ج – د جګړې په برخه کې یې په سخت وخت کې طالب غورځنګ له فوځي تقسیمه وساته.

د – د نړیوالو اړیکو په برخه کې یې حدود او اطراف خپله هم وپیژندل او پر طالب غورځنګ یې هم وپیژندل.

ر – په نړیوالو روابطو کې یې اوسني مقاومت ته بندې دروازې خلاصي کړې.

س – د طالب غورځنګ مشرتابه یې تر یوه حده افغان شموله کړ.

ع – د یوه باندني سازش په توګه یې د داعش پروسه په نطفه کې ناکاره کړه

الله دې خپل بیساري رحمتونه پرې ساري او دائم ولري.

پای



# امیر المؤمنین ملا اخترمحمد (منصور)

# د محراب ، سنگر او دفتر نوښتگر نابغه

شاهد (غزنیوال)

یو کال وړاندې په همدې شپو ورځو کې د اسلامي امارت امیر او د مقاومت نوښتگر مشر ـ ملا اختر محمد منصور رحمه الله د یرغلگرو امریکایانو د یوه ناځوان مردانه برید په ترڅ کې شهید کړای شو.

امیر المؤمنین شهید ملا اختر محمد (منصور) د محراب یو بي ریاء عابد، د سنگر متهور مجاهد او په سیاسي فعالیت کې یو نوښتگر دیپلومات و.

امیرالمؤمنین رحمه الله یو له هغه قیادي شخصیتونو څخه و چې د صلیبي یرغلگرو په خلاف مقاومت کې د مقاومت د بریالیتوب لپاره نه هیریدونکې کارنامې او نوښتونه تر سره کړې .

د نوموړي دا نوښتونه د دې لامل شول چې د مقاومت لمن د هیواد ټولو ساحو ته پراخه او پر افغانستان د امریکایانو اشغال له چلینج سره مخ کړي.

کولای شوای د امیر المؤمنین دا نوښتونه چې په داخلي او نړیواله کچه د مقاومت د بریالیتوب لامل گرځیدلي په دوو برخو و ویشو .لومړی اداري یا داخلي برخه شهید امیرالمؤمنین د مقاومت د منظم والي ، مستحکم والي او متحد والي لپاره داسې لارې چارې عملي کړې چې په داخلي کچه یې د مقاومت لیکې له هرډول پراګنده ګۍ او تفرق څخه محفوظ کړ. نوموړي هغه مهال چې د امارت د یوه پر نفوذه قومندان او بیا تر هغه وروسته د امارت د مرستیال په حیث دنده لرله د مقاومت د ټولو تشکیلاتو لپاره یې یو لړ اصول او مقررات وضع کړل .په دې مقرراتو کې د هر مسؤل د مسؤلیت قانوني صلاحیت او په جهادي فعالیت کې د هغه د کار ساحه مشخصه شوې وه ، د همدې مقرراتو له مخې هم د مقاومت په لیکو کې د تشتت مخه ونیول شوه او هم هرچاته خپل وظیفوي مسؤلیتونه معلوم شول .

همدا راز یې په مجموع کې د مقاومت د ټولو نظامي، امنیتي ، قضایي ، اداري او مالي فعالیتونو د کنټرول لپاره عمومي لائحه او یا د مقاومت د مسؤلینو لپاره د کار عمومي لارښود ترتیب کړ چې د ټول هیواد په کچه یې د مقاومت په عمومي وضعیت ډیر مثبت اغیز وکړ او د هغو ټولو بې نظمیو، ګډوډیو او یو لړ اشتباهاتو مخه یې ونیوله کوم چې د مقاومت په پیل کې په نا فهمي او لاعلمي کې تر سره شوې وو .د جهادي فعالیتونو د انسجام، نظارت او کنټرول لپاره دغه لائحه د دې لامل شوه چې د امارت لیکې له هغو ټولو ګډوډیو څخه وساتي کوم چې له افغانستان پرته د نړۍ په نورو سیمو کې مجاهدین ورسره مخ او د هغوي د جهاد د ناکامي او بدنامي سبب شوي .

د همدې لائحې په برکت د امارت ټولو مسؤلینو فعالیتونه منظم او کنټرول شول، د مقاومت په لیکو کې د بې اطاعتي مخه ونیول شوه او د اداري فساد او له واکه د ناوړې ګټې اخیستنې ټول امکانات له منځه ولاړل.

پورتني اداري لوائح یواځې دا نه چې تش د کاغذ په مخ ترتیب او عملي بڼه یې نه درلوده ، بلکې د هغو د تطبیق او عملي کولو لپاره یې د امارت په پوځي او اداري تشکیلاتو کې ځانګړې مراقب مسؤلین تعین کړل تر څو هغوی په ساحه کې د دغو لوائحو او مقرراتو له عملي کیدو نظارت وکړي او په اړه یې د امارت مشرتابه ته اطمنان ورکړي .

همدا راز شهید امیر المؤمنین د مقاومت د لا ښه انسجام لپاره د امارت په تشکیلاتو کې وسعت راوست او د ځینو مهمو فعالیتونو لپاره یې نوي تشکیلاتي ځانګې ایجاد کړي .د بیلګې په توګه د جذب و جلب او دعوت ارشاد کمیسیون چې له جګړې پرته یې د دښمن د پوځي ځواک په تضعیف کې ښه رول لوبولی ، همدا راز د ملکي تلفاتو د کنټرول او مخنیوي لپاره د سمع شکایات کمیسیون چې تر ډیره حده یې د ولسي تلفاتو مخه نیولې ، د دښمن په محابسو کې د اسیرو مجاهدینو د چارو د بررسي کمیسیون ، د جګړې د زخمیانو د معالجې د چارو کمیسیون او همداسې نورې اداري ځانګې چې د امارت

تشکیلات یې له خالص پوځي تشکیلاتو څخه د یوه منظم او جامع نظام تشکیلاتو ته ارتقاء ورکړه . دا خو په داخلي کچه د مقاومت د نظم او انسجام لپاره د شهید امیر المؤمنین فعالیتونه وو چې له شکه پرته یې د امارت په منظم والي او د هغه په پرمختګ کې خاص رول لرلی دی.

د هغوی برکت دی چې دښمن له خپلو ټولو هڅو سره نه دی توانیدلی چې د مجاهدینو په منځ کې نفوذ وکړي او یاهم په خپلو پراخو تبلیغاتو سره مجاهدین بدنامه کړي .څکه د مجاهدینو د اختلاف او بد نامي عوامل ټول د جهادي لائحې په عملي کولو سره مخکي ترمخکي له منځه وړل شوي .

دوهم په سیاسي یا خارجي برخه کې د شهید امیر المؤمنین اصلاحي فعالیتونه یواځې د مقاومت په داخلي برخې پوري نه وو محدود ؛ بلکې په سیاسي برخې کې یې هم د توجه وړ کارونه کړي چې ښې لاسته راوړنې یې لرلې .

نوموړي وروسته تر دې چې په پوځي لحاظ یې د مقاومت لیکې دومره پیاوړي کړي چې هغوی وکړای شول په عسکري لحاظ د امریکا په مشرۍ د ۴۸ هیوادونو پوځي ټلوالې او ناټو ته شکست ورکړي ، د امریکایانو په مقابل کې یې د مقاومت سیاسي او دیپلوماتیک اړخ ته مخه کړه .

نوموړي د دې کار لپاره د مجاهدینو په منځ کې ورزیده ، خبیر او د سیاسي درک لرونکي اشخاص تعین او په کاروګمارل .دغه کسان چې مستقیما د شخص امیر المؤمنین تر هدایت لاندې په فعالیت لګیا وو د بهرنۍ نړۍ په تیره د افغانستان له نیږدې ګاونډیو هیوادونو سره دیپلوماتیک روابط بر قرار کړل . دې کار مقاومت ته دا ګټه ورسوله چې د امارت د نظامي برلاسي ترڅنګ یې په سیاسي لحاظ په نړۍ کې د هغه حمایت پراخ کړ او

عملا د امارت سیاسي استازي وتوانیدل چې د چاپان، فرانسې ، ناروې او جرمني په شمول منځنۍ اسیا او یوشمیر نورو هیوادونو ته سفرونه وکړي او هلته په مطبوعاتي کنفرانسونو کې په ګډون کولو سره د امارت سیاسي تګلاره نړیوالو ته ابلاغ کړي .د شهید امیر المؤمنین دغه دیپلوماتیک فعالیت دښمن له سختي وارخطایي سره مخ کړ، څکه دښمن پوهیده چې په دیپلوماتیکه ساحه کې د مقاومت بریا په نړیواله کچه په افغانستان کې د امریکا شکست منعکس کوي ، هماغه و چې امریکایان د دې په لټه شول چې د مقاومت د مبتکر قیادت په له منځه وړلو اقدام وکړي .

شهید امیر المؤمنین چې په داخلي لحاظ د امارت له پوځي فعالیته مطمئن و شخصا یې د امارت د سیاسي پرمختګ لپاره په خپله کار شروع کړی او په ډیر کم وخت کې یې یو شمیر بهرنیو هیوادونو ته سفرونه وکړل . خو امریکایي او منطقوي استخباراتو د مبتکر امیر المؤمنین هر ډول فعالیت او تحرکات ډیر په دقت څارل .

که څه هم چې شهید امیر المؤمنین لکه څومره چې په سنګر کې د دښمن څار او مراقبت ته متوجه و په هماغه اندازه په خپل سیاسي فعالیت کې هم ډیر محتاط او د دښمن هر ډول تحرک ته متوجه و .

خو الهي تقدیر و چې امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور ډیر فرصت تر لاسه نه کړي چې په خپلو موفقانه هلو ځلو سره د امارت سیاسي بخش لا تقویه او یرغلګر دښمن ته په دې برخه کې هم داسې ماتې ورکړي لکه په نظامي برخه کې یې د هغوي مجهز ځواک له شکست سره مخ کړی و .

هماغه وه چې د ۱۴۳۷ هجري قمري کال د شعبان د میاشتې په ( ۱۵نیټه ) چې د ۲۰۱۶ م کال د می د میاشتې له ( ۲۱) سره سمون خوري

د امریکایي الوتکې لخوا په نښه او د شهادت لوړ مقام ته ورسیده . انا لله و انا الیه راجعون .

سره له دې چې د اسلامي امارت په قیادت کې د شهید منصور صاحب د مشرتابه دوره ډیره کمه وه ، مګر په هماغه محدوده دوره کې یې داسې مؤثر ابتکارات رامنځته کړل چې د هغو له برکته د امارت په لیکو کې دومره انسجام راغلی و چې د ده تر شهادت ۲۴ ساعته وروسته د امارت لپاره نوي امیر په داسې ترتیب تعین شو چې هیڅ شخص یې هم له تعین سره مخالفت ونکړای شوای .

که څه هم چې له پوځی لحاظه د شهید امیر المؤمنین شهادت ډیره ستره خلا وه چې د مقاومت د مشر تابه په سطحه رامنځته شوه ، خو د ده له لوري مخکي ترمخکي پوځي انسجام مجاهدین له داسې یوې ورځې سره عادت کړی شوي وو چې که یوه ورځ دی د مقاومت په قیادت کې نه وي هم هغوی به له هیڅ ډول ګډوډي او بي نظمي پرته د یرغلګرو خلاف جهادي مقاومت په منظم ډول پرمخ بیایي .

څکه نوموړي د جهادي چارو د پرمخ وړلو لپاره داسې مقررات وضع کړي وو چې هغوی ته په رجوع کولو سره د مجاهدینو ترمنځ نه د کوم اختلاف امکان موجود و او نه هم د زعامت او قیادت په سر خپل منځي منازعه .الله تعالی دي د جهاد او سیاست پر دې نوښتګر مشر۔رحمتونه وکړي ، امثال دې الله په امت کې ډیر کړي او پاکې وینې دې د جهاد د کامیابي او هیواد د خپلواکي لامل وګرځوي ... امین یارب العالمین .

هرګز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق
..... ثبت است برجریده عالم دوام ما



# شهید منصور رحمه الله

## د امارت او ملت لپاره څه وکړل ..؟!

موسی فرهاد

د اسلامي او عربي نړۍ نومیالي مجاهد او د خپلواکۍ د لارې وتلي مبارز، عمرمختار ویلي: «إن الضربات التي لاتقصم ظهرك؛ تقويك» کوم ګذارونه چې دې ملا ماته نکړي؛ نوردې ځواکمن کوي(.

د تاریخ له مطالعې نه څرګندیږي چې تاریخ پخپلو پاڼو کې تل هغه څیرې په ښه نوم ثبت کړي دي چې هغوی د آزادۍ د ترلاسه کولو په لاره کې له هیڅ ډول ایثاراو فداکارۍ نه ځان نه وي سپمولی. او هغه څوک بیا د تاریخ په پاڼو کې ترټولو منحوس او بدترین وګړي ثبت شوي چا چې د خپل هیواد، خاورې، ناموس، کور او کلي په اشغال کې د یرغلګرو ملا تړلي وي .

زموږ د هیواد تاریخ له ابتداء نه تر اوسه همیشه د سختو ازمایښتونو تاریخ پاتی شوی چې پورتنۍ دوې کټګورۍ وګړي یې پخپلو پاڼو کې راته ثبت کړي او ثبتوي یې .

اوسنی جریان چې د امریکا په مشرۍ د کفري اشغال پر ضد د شهید منصور غوندي مؤمنانو جهاد ته ملا تړلې، د خپل دین، ناموس او خپلې خاورې د آزادۍ لپاره سرونه قربانوي؛ د عمرمختاررح د خبرې ژوندی مصداق دی.

څومره چې دا وګړي ټکول شوي؛ همدومره پیاوړي شوي دي، حقیقت دا دی چې د دې قافلې ټولو لارویانو ښه امتحان ورکړی، ولي شهید منصورصاحب هغه څوک دی چې تر أمیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد وروسته زموږ د تاریخ یو ستر باب جوړوي.

هغه له دې امله چې په ډېرو سختو شرایطو کې یې د جهادي صف د سمبالښت چارې ورله غاړې شوې، تر ده وړاندې د امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد دوه ځای ناستي یو په بل پسې- اسیران او بیا یو په بندیخانه کې شهید کړل سو؛ نو د امارت ټولې چارې د امیرالمؤمنین لخوا ده ته وسپارل شوې. په داسې حال کې چې دا مهال په هیواد کې د خارجي یرغلګرو پوځي قوت هم اوج ته رسیدلی و، تر سل زره زیات عسکر یې ځای پرځای کړي وو.

مجاهدین له نظامي، مالي، سیاسي او اجتماعي پلوه داسې ګڼل کیدل چې له یو متلاشی حالت سره مخ دي. خو منصور صاحب په ښه متانت سره د همغو سختو حالاتو او مجبورو شرایطو سره داسې مقابله وکړه چې جهادي صف یې د بل هر وخت په نسبت پیاوړی او په سیستماتیک لحاظ ښه منظم کړ. ډېر داسې کارونه یې وکړل چې اوږدمهاله اغیزې به یې نه یوازې د امارت، بلکې د ملت پر ژوند هم پاتې وي. انشاءالله




**منصورصاحب ترټولو ستره کارنامه:**

دا وه چې جهادي صف يې د ټول هيواد په سطحه په يو داسې چوکاټ کې تنظيم کړ، چې له مشرتابه تر ډېرې وړې دلګۍ پورې ټول صف د يو ځنځير غوندې سره وپيل شو، د منظمو پوځي تشکيلاتو ترڅنګ يې داسې اداري واحدونه د کميسونونو او کميټيو په شکل کې رامنځ ته کړل چې هر يو يې د يو وزارت حيثيت لري او د کارونو په ترسره کولو کې هر يو پخپله محدوده کې پوره با اختياره او باصلاحيته وي .

په دې کار سره جهادي صف په اتومات شکل ، له يو غورځنګ نه وړپورته د يو موازي حکومت بڼه غوره کړه ، چې اغيزه يې مستقيماً پر ولسي ژوند راځرګنده شوه.

دا ځکه چې تر دې وړاندې که څه هم مجاهدين د يوه امير په قيادت کې په جهاد بوخت ول ، د دښمن په وړاندې عمليات يې خپلسري نه وو ، مګر چونکه تحرکات يې يوازې پوځي او هغه هم په چريکي بڼه وو ؛ نو طبعي ده چې دا ډول حالت نظم او ډيسپلين څه ناڅه متاثره کوي.

او هغه بيا هرو مرو د ولسي- وګړو د ژوندانه چارې له ستونزو سره مخ کوي.

خو شهيد منصور رحمه الله د يو لايحوي دستور په جوړولو او بيا د هغه په عملي کولو سره په دې بريالی شو چې لومړی د مجاهدينو نظامي صفوف د زونونو، محاذونو، قطعاتو، حلقاتو، وړو او سترو دلګيو په شکل له سره تنظيم کړي وروسته يې نور اداري واحدونه د کميسونونو په بڼه رامنځ ته کړل، لکه قضائی، سياسي ، مالي ، فرهنګي ، دعوتي ، او داسې نور. د هيواد د ټولو ولاياتو او ولسواليو لپاره يې د نظامي مسئولينو ترڅنګ ملکي مسئولين هم وټاکل. چې دا لړۍ تر ننه پورې د يو موازي حکومت په شکل ښه پرمخ روانه ده .

نن يې موږ او تاسو وينو چې زياتره وخت غربي مطبوعات او د کابل په اداري کې دننه ځينې حلقې په دې اعتراف کوي چې اتيا فيصده ولس خپل ټول حقوقي او ورځنۍ مسائل د کابل د رشوت خوره حکومت پرځای د طالبانو محاکمو او نورو ادارو ته راجع کوي. ځکه چې د طالبانو له نظام نه يې د انصاف او د مسائلو د رښتيني حل توقع وي ، نه د کابل د فاسد رژيم نه .

کله چې د امارت ټول جهادي صفوف په يو چوکاټ کې په عملي بڼه منسجم کړای شول ، نو سمدستي يې اثرات د مجاهدينو پر بريا او د ولسي- خلکو پر ژوندانه راڅرګند شول. همدا لامل دی چې نن په ملي او نړيواله کچه اسلامي امارت ته د يو خپلواک، منظم، باصلاحيته او د افغانستان د نماينده نظام په حيث کتل کيږي .

چې دا ټول د شهيد منصور رحمه الله د ابتکار او زيار پايله او د نوموړي هغه کارنامه ده چې له امله يې نن امارت او ملت دواړه د بريا تر پولې رسيدلي ښکاري. ان شاء الله

# حاوي شخصیت

**جمال الدین ادیب**

څومره چې نړۍ پر خپل مادي پرمختګ اعتماد کوي، څومره چې ترقيپال په رواني ماتې کې خپل ارزښتونه بايلي، څومره چې حريصان او طامعين د پرديو درباني ته دلايل وايي او څومره چې ډارن خلک ان ښکاره دښمن سره غاړه وړي؛ هغومره په امت کې د ايمان ځلي پيدا کيږي، هغومره د مومنو پرګنو منځ کې د عقيـدوي تعـالي پامتـهداران زيـږي، هغـومره د مبـارزې يـارانو کـې د قناعت قامتونـه لـوړيږي او هغـومره د تـاړاکونو مخې ته د ټينګار او ثبات غرونه دريږي.

کلـه چـې د مشرـ اميرالمـؤمنين د وفات خبره اعلان شوه، د يوه ژورناليست يو تاثر مې ډېر خوښ شو. ويل يې نن هغه وخت دی، چې د استقلال او حريت خبره په کې ورکه ده. سره له دې، چې هر څوک استقلال او حريت ته د ارزښت په توګه ګوري او هر څوک ځان د استقلال او حريت علمبردار ګڼي، مګر رښتيا دا دي، چې امت کې نن استقلال او حريت نه شته، ځکه خو په کې د ملاعمر غونډې سړي په نامعلوم ځای کې ښخيږي..ځکه خو د ملاعمر غونډې سړی په کې په مرګ هم مجرم دی! نن که څوک ملاعمر نه پيـژني، نـه بـه يې پيـژني؛ مګـر کلـه چې استقلال او حريت معنی پيدا کړي، بيا بـه يې د ننيو دعوی‌طلبو غلامانو لمسيـ هـم په واز کومي د اتل په حيث وپيژني!

مـوږ تـه جهـاد سـتر شخصـيتونه راکړل. مـوږ کـه دفتر خوښي او ذوقپال وی، شـايد چـې د ننيـو ذوقپـالو څېړونـه تورو او غاړې دار ته برابرې وی. پـه بنګلـه دېش او مصر کې همدغسې خلک اعـدام شول، چې د طاغوتي نظام غبږه کې د دعوت او سمون خبره کوي. دا چې د کفر توره د مجاهدينو په وينو خړوبـه ده، نـو دوی د خـير پـر غونـډۍ ارام تـنفس وباسي.

زموږ د جهاد سترو شخصـيتونو پـه يوه ساده موقف د تاريخ هغه تېر اسلامي معيارونه راژوندي شـول، چـې د ذوقپـالو او سليقه خوښو د ټول حرکت دوره يـې لا د منهج په دعوی له ډاره يادولی نه شي .

کټ مټ لکه مشر امير؛ شهيد امـير هم د بې قدره ګوهريانو قيمـت تـه پـاتې شو. هغه د شاعر خبره:

د بې قدره ګوهريانو په بازار کې
خرموره لعل وګوهر درې واړه يو دي

د اسلامي فکر قاموس کې شايد لـه جهاد و مبارزې وراخوا بله لوړه کارنامه نه وي، خو که د جهاد په دايره کې د شـهيد منصور رحمه الله پر شخصيت څـه وايـو، ډېر څه پـرې ويـل کيـږي، مګـر د ليکنـې د عنوان په توګه مې نظر دا دی، چې شـهيد منصـور د روان اسلامي جهـاد يـو حـاوي شخصيت و..د جهـادي برياو لارې چارې يـې ډېـرې ښـې تـاکلې..نړۍ او سـيمه‌ييزو امنيتونو سره يې په داسې کړلېچونـو کـې بې رُخه مزل کاوه، چې ايله په شهادت يـې دښمنانو ځـان لـه حرکتي الغـازو خـلاص کړ..د يوه هوښيار او جدي مدير پـه توګـه يې په داسې مرحله کې حرکـت لـه شـړېدو وژغوره، چې ډېـرو نـاځوانو يـې لـه پښـوا خوبونه ليدل او ډېرو نـامردو ورتـه پڅـوا نه له شوقه ژبې پر شونډو تېرولې..

## جهادي برياوې

ټولې نړۍ سره دوامداره او بريالۍ جګړه پر مخ بېول ستراتيژيک فکر، هوډ او سربښندنه غواړي. په هياهوی، غلبلې او شعارونو مقابله نه کيږي. مبارز به د خپل دښمن د قوت حجم پيژني، په هماغه اندازه به ورته ځپونکی قوت برابروي. مبارز به وخت پر وخت د خپل کار د نيمګړتياو تدارک کولی شي، د پروګرام له مخې او د شرايطو له امله به د کار بڼې ته تغيير ورکولی شي. د ټول خوځښت لپاره به د امکاناتو معقولې او شفافې لارې چارې سنجوي او د ورځ تربلې پرمختګونو سره به د امکاناتو ډېرول هم مدِنظر وي. حرکت او مبارزه به پر واقعيتونو بناء وي. هغه علتونه به دقيق او پر ځای وي، چې پر بنسټ يې جهادي حرکت ولاړ وي.

شهيد منصور ته د خپلې مبارزې حجم معلوم و، په همدې اساس د امکاناتو برابرولو کې هم موفق و. همدا ډول د ترکيز نقاط هم ښه ورمعلومېدل. همدا لامل به و، چې د ده له امارته وروسته د سترو مراکزو فتحې پيل شوې. د جهادي ډسپلين په موخه منظم کمېسيونونه وټاکل شول او منظم فعاليت پيل شو .

ما ته خو داسې ښکاري نه ده معلومه، چې د جهاد او هغه هم دفاعي جهاد جريان کې دې يو حرکت د يوه ستر دولت په څېر تشکيلات ولري او هغسې منظم فعاليت دې ولري، لکه باثباته حکومت. شهيد منصور رحمه الله هم امارت ته د جهاد وهجرت مرحله کې هم دولتي تشکيل برابر کړ او هم يې ورته مناسب امکانات په ډېره عادي طريع برابرول، چې دا يې لومړۍ ځانګړتيا وه.



## امنيتي زيرکتيا

له بده مرغه زموږ سيمه امنيتي(استخباراتي) دريځونو محاصره کړې. دوه هېوادونه په ډېره عادي موضوع کې هم امنيتي اهداف لټوي. سياسي تحرکات هسې يو تظاهر دی، اصل کار هغه دی، چې امنيتي اړخ لري او د امنيتي اهدافو تناظر کې مربوطې اداري سره خبره حل وفصل شي .

پر همدې اساس سفارتونه ټول جاسوسي دفترونه دي. سفير چې ګورې د خپل هېواد د امنيتي ادارې متقاعد جنرال به وي. همدا لامل دی، چې سيمه کې ستونزې ورځ تر بلې ډېرېږي، غځيږي او معضلو ته رسيږي .

په دغسې حالاتو کې که د حرکت مشر امنيتي زراکت ونه لري، خامخا به حرکت د کوم امنيتي هدف قرباني کيږي. د اسلامي امارت لومړي مشر ـ خو دومره هيبت درلود، چې ان چا يې نوم بې اودسه نه شو اخيستلی او دا خو پرېږده، چې کوم امنيتي مغز دې د هغه د استعمالولو کوښښ وکړي.

شهيد منصور بيا د نړۍ او سيمې امنيتي تيورسنانو ته د سر کاسه کې اوبه ورکړې. د منصور صيب تحرکات او فعاليتونه لکه ادبي الغاز داسې ول، چې «بې ادبه» امنيتپال يې په سر او بر هم نه پوهېدل. همدا زيرکتيا وه، چې د نړۍ استعماري او نيمه استعماري دولتونه سره سلا شول او ايله په دې وتوانېدل، چې شهيد يې کړي.

د سيمې مغرور امنيتپال هله ده ته متوجه شول، چې شهيد منصور کلونه د مشر ملا صاحب د وفات خبره دومره پټه وساتله، چې يادو کلونو کې چا شک قدرې هم نه و کړی .

همدا ډول د امارت سياسي تحرکات يې د سيمې امنيتونو نه تر اخره بريده خوندي وساتل. دا نن چې په سياسي کچه کومه غوغا ګډه ده، د همغه مهال تاثير دی. شهيد منصور په ډېره فعاله بڼه د نړۍ ستر ستر هېوادونه په خپل سياسي زراکت په بدبينۍ سره مخامخ کړل. يو وخت، چې د نړۍ ټولو هېوادونو سره مخالفتونه هېر کړي ول او د «اسلامي



ترهګرۍ» هیولی یې پر سرونو سپره وه او ټولو په یوه قوت مسلمانانو ته مخه کړې وه، ډېرې په کې د شهید منصور زراکت له امله پوه شول، چې موضوع هغسې نه ده، چې امریکا یې وایي. دا دې وینئ، چې اوس خپلو کې یې سره بې اعتباري تر ډېر لرې ځایه ورسېده .

د سیمې او نړۍ ډېر هېوادونه چې پر امارت یې د ګاونډیو د تاثیر فکر درلود، له یوې مخې پر دې پوه شول، چې دا هسې افواهات دي او هغو خلکو، چې له دې افواهاتو یې استفاده کوله، ټولې نړۍ ته معلوم شول. تېر کال چې څلور اړخیزې ناستې پیل شوې، پر اسلامي امارت سخت فشارونه راوړل شول، چې مازې ناسته کې ګډون وکړي. کنځاوې دې وکړي، خو ګډون دې وکړي. شهید منصور هیڅ ډول فشار ته غاړه کښته نه کړه او یو «نه» یې ورته ووېل.

کله چې د څلور اړخیزو ناستو لړ کې یو ځل چین کوربه و او پر اسلامي امارت سخت فشارونه وارد شول، شهید منصور رحمه الله په ډېره چټکتیا چینایان پر موضوع وپوهول او چین له کوربنۍ تېر شو. دغه نقطه شایې نړۍ او سیمې ته بیخي د زغم نه وه، نو کوښښ یې وکړ، چې ایله په شهادت یې له غمه خلاص شي.

د سیمې یو عالم د شهید منصور رحمه الله له خولې نقل کا چې مونږ ورته د توصیو لړ کې وویل، چې سختې دندې ته دې غاړه ورکړې، خو چې د مذاکراتو په اوازو دې ونه غولوي یا دې مجبور نه کړي، وایي هغه ووېل : ټوټې ټوټې به مې کړي، خو دغې شرم ته به مې راکش نه کړي.

## د صف یووالی

ډېرو خلکو د مشر ملاصاحب وفات ته انتظار کاوه. ما خپله له خلکو اورېدلي : خدای خو دې بنګړی مات کړي، بیا به ګورو. بنګړی مات شو، ډېرو خلکو شور وغوغا هم ګډه کړه. اختلافونه شول او دلایل شول، مګر منصور رحمه الله په هر صورت د صف یووالي ته توجه وکړه، ټول یې پر ځان رامات کړل. چا چې بښې ارادې نه درلودې یا منزوي شول یا بېرته په بیعت مجبور شول.

نړۍ او سیمهییز امنیتونه هم منتظر ول، چې د امارت د ماتېدو چانس پیدا کړي، دوی هم سخت کوښښ وکړ، چې درزونه غټ کړي، مګر څومره چې امنیتونه ګړنډي شول، هغومره ده له خپلې مشرۍ رغنده کار واخیست. صف یو پاتې شو او غرضي خلک مختوري شول.

اسلامي امارت، چې د مخکیني جهاد حزبي تقسیماتو پایله کې تاسیس شوی؛ یوه خبره هم په کې دومره منفوره نه ده، لکه انقسام او انشعاب. هغه خلک چې دغه ډول کوښښ کوي یا ترې دا ډول علایم بریښي د مجاهدینو منځ کې تر ټولو منفور خلک دي .

شهید منصور ته که له یو لوري خپل زراکت ګټه ورسوله، بل لوري ته د مجاهدینو دغه حس هم ډېر کار وکړ. که نه د انشعاب ته بښې زمینې برابرې وې. چا شرعي دلایل ویل، چا تاریخي دلایل ویل او چا هم سیاسي. هر چا ته امکانات او ظروف هم برابر ول، مګر له نېکه مرغه، چې مجاهدین د تېر جهاد دغه ترخه خاطره یاده ساتي او ځان ترې تر اخره بریده ژغوري .

د یو حرکت نورې نیمګړتیاوې دښمن ته دومره کاري ګټه نه شي رسولی لکه حرکتي تیندکونه او انشعابونه. استعماري ځواکونه همدې نیمګړتیا ته تر نورو نیمګړتیاو ډېر په طمع وي، کار پرې کوي، مصارف پرې کوي، ځکه چې انشعاب په هر صورت حرکت ته زیان اړوي او دښمن ته ګټه..په هر صورت.

# دسرلاري او سرلـوړي شهيد امير المـؤمنين منصور صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ

# د قيادي شخصيت په اړه څو ټکي....

ابوظهير شمس

دځـرک جهـادي، علمـي او سـياسي مجلې شـاغلی مسؤل او چلوونکي لـه دې پلوه دسـتاينې او شابسې- حقـداربولم چـې دشـهيد اميـر المـؤمنين مـلا اخترمحمـد منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ دشهادت نيټې( ۲۱مۍ) پـه مناسبت يې دځـانګړې ګنې چـاپولو هـوډ کړی دی

ښکاره ده زمونږ په افغـاني ټولنـه کې دايوه هميشنۍ کمزورتيا چې شتون لـري، چې مونږ خپل نوميـالي، قهرمانـان ،مشران او اتلان چې هغسې حق لري نه ستايو، نـه يې يـادوو او راتلونکـو نسلو تـه د هغـوی ميړانو اوشهامتونو نکلونه ياکيسې نـه ليکو، دهمـدې غفلـت پـه جـه دتـاريخ زيـات نوميالي، مشاهير او مفـاخر شخصـيتونه نـن له مونږ ورک دي او دکارنامو او قربـانيو پـه اړه يې مـونږ کـم معلومـات لـرو، بـل پلوتـه دنړۍ پرمختللي او ازاد ولسونه بيا دخپلو ملي مشرانواو اتلانـو د ژونـدون او کارنـامو خوندي کولو په باب خورا حساس او بيـدار ليـدل کېږي ، هغـوی يې پـه اړه ځـانګړې اداري اوټـولنې جـوړې کـړې ، هغوتـه يـې پراخ وسايل، اسباب او مـواد ور کـړي څـو مـلي مشرانـو او د نوميـاليو خـدمتونو او کارنامو ته په دې ډول ژوند اوبښي...

لـه نيکـه مرغـه پـه دا وروسـتيو کـې زمـونږ پـه يوشـمير اشخاصـوکې هـم دغـه جذبـه راټوکېـدلې او ددې لپـاره متحـرک ښـکاري چـې دهېـواد دمشـاهيرو او نوميـاليو شخصـيتونو پـه ژونـد ،کارنـامو او دهغـوی پـه اجتماعـي خـدمتونو مسـتقل کتابونـه وربانـدې وليکـي، پـه اړه يـې اختصـاصي ګنې چـاپ کـړې او ځـانګړې مقـالې پرې وليکي؛ پـه دې لړ کې تـازه مثال دځـرک مجلې لخوا دشـهيد امير المـؤمنين ملامحمـد منصـور رحمـه الله دشـهادت نيټـې راتلـو پـه مناسـبت د هغـه دجهادي او سياسي کارنـامو سـتايلو پـه اړه دځـانګړې ګنې چـاپول دي ،رښـتيا هـم د فقيد امير المؤمنين ژونـد ، دهغـه جهـادي او سياسي خدمتونه زمونږ د تاريخ يو زرين بـاب دی ، اوددې بـاب ليکـل دمجاهـدو قلموالـو او ليکوالـو دينـي ،مـلي او اخلاقي مسؤليت دی. دکـوم بـاب دليکلـو پـه اړه چـې هغـوی تـه لـه الله تعـالی نـه توفيـق اومرسته غواړو.

پـه ټولـه کـې کـه داروابښـاد منصورصـيب د رسـمي خـدمتونو او مسؤليتونو برخې تـه پـام وکـړو، نـو پنځـه دورې يا مرحلې په نظر راځي ، په کومو کـې

چـې نومـوړي بېلابېـل مسـؤليتونه او خدمتونه سرتـه رسولي، دمسؤليتونوپه لړ کې يې لومړۍ مرحلـه يـا دوره دطالبـانو داسلامي تحريک دپيل سره سمه پيلېږي، کلـه چـې دهېـواد تـاريخي ښـار (کنـدهار) دطالبانو له لوري فتحـه شـواوددغه وياړلي ولايت نه دشر او فساد کرغېړن خـادر ټـول شـو ، د تحريـک د مؤسـس او اميـر ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ لخوا شـهيد منصورصـيب دکنـد هـار د نړيـوال هـوائي ډګر د مسؤل پـه حيث پـه رسمي دنـده اوګومارل شو.

په همـدې دوره کـې د منصورصـيب په شخصيت کې پټ صلاحيتونه بيـرون تـه وځليدل او هم د مشر ملاصيب دتوقع سره سم دکنـدهار نړيـوال هـوائي ډګرپـه څېـر دخورا مهم مسؤليت لپاره دنوموړي په څېـر دحلـيم، بردبـار، هميشـه متحـرک اوفعـال انسان انتخاب په نتيجه کې يوښه انتخـاب ثابت شو، شـهيد منصورصـيب پخپـل ټـول بشري توان او اخلاص دهـوايي ډګـر اړونـد چارې په ښه سليقه منـدۍ رهبري کـړې ، دشراو فساد د تاړاکونو ځپلی هـوائی ډګـر يې د شته ظروفو او امکاناتو نـه پـه اسـتفاده د کورنيو اوبهرنيو الوتنو لپاره چمتـوکړ، هـم

يې پکې د دولتي نظم او ډسپلين مقررات پلي کړل که څه هم منصورصيب دمدرسې طالب و ، طبعاً داداري او مسلکي کارونو د سرته رسولو عملي تجربه -به يې يوڅه کمزورې وه، ليکن دخدای ورکړې ذهانت او زيرکتيا په لرلو يې دکندهار نړيوال هوټې ډګر د پېچلو اداري او مسلکي چارو په ښه توګه رغولو او منظمولو سره اوښوده چې په نوموړي کې د ښې حکومتدارۍ په اړه د فطري ذوق او خاصې علاقې لرلو څخه برخمن دی

## دمسؤليت دوهمه دوره :

همدې ورځيا او پوهې ته په پام دکابل دفتحې سره سم دامير المؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ د فرمان له مخې دهوائي چلند او تروريزم دوزير او هوايي قواوو داعلى قومندان په حيث تعين شو،داچې نوموړی د امير المؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ دخاصو ،اعتمادي او فعالو وزيرانو له ډلې څخه و، تر پايه د ياد وزارت نه بل ته تبديل نکړ، چې دا که يو لورته په منصور صيب رَحِمَهُ ٱللَّهُ دمشر۔ امير المومنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ کامل باور، ډاډ او اعتمادښيي له بل پلوه د منصور صيب د کمال او صلاحيتونوښکارندويه دی ، چې نوموړی دخپلو اړونده اموراتو په سرته رسولو کې برلاسې لرله ،نو ويلای شو چې منصورصيب دوزارت په دوره کې يو موفق، کامياب او فعال وزير و، ولې که موفق اوفعال نه وای هيڅکله نشوای کېدای چې دطالبانو دنظام په څېر صاف او شفاف نظام کې يې ترپايه خپل موقف ساتلی وای، ولې يواځينی شی چې دطالبانو په صف کې دموقف او مقام

لرلو زريعه او وسيله ګڼل کېده هغه کامله تقوا او په ټولو چارو کې داسلام دمبين دلارښوونو عملې تابعداري اوپه پوره اخلاص سره د خپل مسؤليت په سرته رسولو کې فعال رول درلودل په کوم کې چې منصورصيب حساس او بيدار و

## دمسؤليت دريمه دوره:

په ګران هېواد دامريکا ديرغل او داسلامي امارت دسقوط وروسته چې دامير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد په حکم د جهاد او مقاومت ليکې تنظيم شوې، منصورصيب دکندهار لپاره داسلامي امارت دوالي او درهبري شورى دغړي په حيث تعين شو او ښکاره ده چې کندهاردهېواد په ولايتونو کې يو ترټولو مهم او ستراتيژک اهميت لرونکی ولايت دی؛ په خاصه توګه دطالبانو داسلامي تحريک دتاسيسي مرکز او دامير المؤمنين داستوګنې د مقر په حيث يې پوځي او سياسي اهميت نور هم سيواو، په دې وجه امريکايي يرغلګر له پيل څخه ديته متوجه ول چې کندهار کې ترنورو ولايتونو زيات جارحيت او ظلمونه ترسره کړي ، منصورصيب رَحِمَهُ ٱللَّهُ په لنډ وخت کې کندهار ولايت اړوند ولسواليو او مربوطاتو کې دامريکايي او کاناډايي يرغلګرو پرضد دمجاهدينو صفوف منظم کړل اوهغوی ته يې ملاماتوونکي زيانونه ورسول او په دې سربيره يې درهبري شورى دغړي په حيث داسلامي امارت په مشورتي بورډ کې ديومخکښ او فعال غړي په توګه رول او کردار درلود...

## دمسؤليت څلورمه دوره...

څلورمه دوره کله چې داسلامي امارت نايب ملا عبيد الله اخند رَحِمَهُ ٱللَّهُ اسير شو، په ځای يې مشر۔ امير المؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ داسلامي امارت دنايب ملاعبد الغني برادر ترځنګ منصور صيب هم داسلامي امارت د نايب په حيث مقرر کړ، څو دملابرادراخند سره په ګډه دامريکايانو په خلاف دافغان تاريخ ترټولو ستر جهاد په رهبري کولو ونډه واخلي، منصور صيب رَحِمَهُ ٱللَّهُ د کريمانه اخلاقو په لرلو او مخلصانه کوښښونو په وجه دمجاهدينو ترمنځ پراخ مقبوليت اوکلک باور پيدا کړ ، د هرمشر او کشر مجاهد له خولې به يې دښه سلوک ، حسنه اخلاقواونيکې رويې نکلونه کيدل، کله چې ملا برادر اخند هم اسير شو ( الله تعالى دې نوموړي ته د بند له اذيتونو نجات نصيب کړي ) مشر۔ امير المؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ د خپل لزوم ديد له مخې دمنصورصيب ترڅنګ دبل نايب په حيث بل څوک مقررنکړ يواځې دمنصورصيب وجود يې دنيابت لپاره کافي اوباله، دخدای تعالى په مرسته اوکومک منصورصيب پرلپسې برياوې او سوبې ترلاسه کولې آن تردې چې په ټول هېواد کې دمجاهدينو صفوف او ليکې يې منظمې کړې، داسې ولسوالۍ او سيمه پاتې نشوه چې هلته داسلامي امارت تشکيلات او مجاهدين شتون ونلري او په يرغلګروبريدونه او عمليات نه وې روان، دمجاهدينو دپراخ شتون له امله دښمن په ټول هېواد کې دکلک او پراخ مقاومت سره مخ شو،ورته درانه ځاني اومالي تلفات

واوښتل او هم يې هغه ټول هوسونه او ارمانونه دخاورو سره ګډشول دکومو په نيت يې چې په افغانستان يرغل کړی وو

داهم د منصور صیب رَحِمَهُ ٱللَّهُ دمدابرانه قيادت برکت و چې داسلامي امارت ليکې تړپايه دهرډول انشعاب او چاودون څخه خوندي پاتې شوې، څکه نوموړي دامارت ټول مشران او کشران مجاهدين پخپل اخلاص او للهيت باوري کړي وو، چې زما هدف يواځي او يواځي دالله تعالی رضا ده او ددې پرته بل هيڅ مادي او دنياوي هدف يا غرض نلرم ديته په کتوويلای شو چې داسلامي امارت دمشرانو او کشرانو مجاهدينو او مسؤلينو په زړونو کې دامير المومنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ وروسته چې دکوم شخصيت په اړه د بې پناه احترام او مقبوليت جذبې شتون لاره هغه شخصيت دشهيد منصورصيب و چې هرمشر_ او کشرمجاهد ته له ځانو هم ور ګران و.

منصورصيب نوښتګر انسان و نوموړي دخپل نيابت په دوره کې داسلامي امارت مرکزي هسته ورغوله، د ټولو کليدي چارو په اړه يې منظم کميسيونونه تشکيل کړل اوبيا يې دټولو کميسيونولپاره کاري لايحې ترتيب کړې، په خاصه توګه هغه کميسيونونه چې دهغو کاري وظايف زيات مهم دي لکه دنظامي چاروکميسيون، محاکمو کميسيون،تعليم و تربيې کميسيون، فرهنګي چارو کميسيون ، سياسي چارو کميسيون، صحت کميسيون ، داقتصاد او مالي چارو کميسيون دهر يو لپاره يې ځانګړې توجه ورکړه او دهغوپه



کارونوکې دتعطل ټول موانع يې لرې کړل او هم يې دټولو ادارو دپرمختګ لپاره ټولې اړينې اسانتيا وې دوخت اوزمان دشرايطو سره برابرې کړې

دواليانو او نورو مسؤلينو دشرعي پوهاوي لپاره يې دشرعي دورو او تدريس لړۍ پيل کړه څو په اخلاقي لحاظ دمجاهدينو صفوف پاک او سپيڅلي اوسي او تل يې ټينګار کاوه چې دجهاد د هغو اهدافو پخاطر چې مجاهدين خپلې معصومې وينې قربانوي بايد دهغو په کلکه ساتنه وکړو، مسؤلين ورته ښه ځير او متوجه اووسي نو په دې توګه دشهيد منصورصيب رَحِمَهُ ٱللَّهُ دنيابت دوره دبلابېلو لويو جهادي او سياسي لاسته راوړونو دوره وه؛ دمجاهدينو د بريمن تاريخ يوه شاندار پړاو و، چې اسلامي امارت او مجاهدينوته يې د معنوي او فکري پلوه هم ډېر څه ورکړل؛ نن الحمد الله مجاهدين دهغو معنوي برکاتو اونظرياتي اساس اهميت حسوي

## دمسؤليت پنځمه دوره:

دمسؤليت پنځمه دوره يې داسلامي امارت د زعيم او امير المؤمنين په حيث هغه شانداره، تاريخي اودعظمتونو ډکه دوره وه ، چې کله داسلامي امارت مؤسس امير المومنين ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ دوربينښې ناروغۍ له امله وفاتاو دخپل حقيقي خالق سره يوځای شو؛ په رواني لحاظ دهغه مړينه داسلامي امارت دمرګ او ژوند ترمنځ دجنګ مرحله وه؛ داسلامي امارت دبقا او فنا ترمابين دکشمکش مرحله وه؛ يو طرف ته دمشر_ ملاصيب دوفات غميزې ټول افغانان او مجاهدين ولړزول او د يو ستر وير په ټغر يې کينول بل پلو ددښمن دسيسو، توطئو او شوموپلانونو نيږدي وچې داسلامي امارت د صف وحدت ټوټې، ټوټې کړی وای او مجاهدين يې د يوبل ناورين په ګرداب کيباسلي وای،چې دهغه نه د رابهر کيدوچانس يې نه و، په دغه نازکه مرحله کې چې داسلامي امارت رهبري شوری په کوم تدبر او هوښيارتيا د اسلامي امارت ليکې دانشعاب او انشقاق له ناورين وژغورلې له امله يې ټوله رهبري شوری دشابسي_ مستحق ده اوپه خاصه توګه دمنصورصيب پشان، حليم، مخلص، متعاهد،اسلامپال ، په وطن او ولس مين او عقلمند انسان دامارت د قيادي مقام لپاره وړاندې کولو په وجه درهبري شوری

دغړو فراست او بصیرت ته دوه لاسي سلام!!

څکه منصورصیب ته الله تعالی داسې کمالات ، صلاحیتونه او صفات ورکړي وو ، دکومو شتون چې ددغسې یوناز کې، حساسې مرحلې لپاره اړین و ، نوموړي دغه مهال په کومو سړو مغزو داسلامي امارت دلیکو دننه دوحدت ، یو والي او نظم روحیه خوره کړه ایله د یو انقلابي رهبر او مشره یې تمه کیدای شي!! وې ښوده چې نوموړی دملګرو سره دافهام او تفهیم په برخه کې دښې مؤثرې ملکې خاوند دی، هیڅکله معانداو ضدي انسان ندی، دهرتن د دلیل او منطق د اوریدو زغم او حوصله لري، کنه دېرى کتونکي په لومړي سرکې ډادمن نه وو، چې ګواکي منصورصیب به دټولو لپاره یومنلي مشر۔ شي لیکن ژر ښکاره شوه چې نوموړی د مخالفتونو په کنترولولو او دصف په یو ساتلو کې نه یواځې برلاسی دی بلکې دصف دټولو مسؤلینو او مجاهدینو ترمنځ ورته د هغسې۔ احترام اودرناوي په نظر کتل کېږي په کوم نظر چې به امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ته کتل کېدل .

د شهید منصورصیب رَحِمَهُ ٱللَّهُ یوه تلپاتې یادګاري کارنامه دا هم ده چې درهبري شورى لخوا دبعیت وړاندیز یې په دې شرط اومانه چې دی به دځان لپاره دوه نائبین ه ټاکي؛ او هغه دواړه یې پخپله ونومول ( شیخ الحیث مولوي هبة الله اخندزاده او خلیفه صیب سراج الدین ) ، رهبرې شورى دکوم ځنډ پرته یې داشرط اومانه، په دې کار سره دصف دننه داتحاد او یو والي پر ضد ټولې دسیسې لاړې شنډې او ناکامه شوې او ورسره دمنصور صیب په وقار او درنښت کې تر پخوا نورهم زیاتوالی راغی ،اود اسلامي امارت مسؤلینو ته یې دیو تلپاتې ابدي وحدت روحیه هم اوبښله ، په خاصه توګه کله چې منصورصیب رَحِمَهُ ٱللَّهُ خپله شهید شو او اسلامي امارت بیا د قیادت له خلاء سره مخ شو؛ دتیر ځل په نسبت د اځل دقیادي خلاء ډکولو هغومره زحمت او وخت اونه غوښته کوم چې یې دلومړي قیادي خلاء ډکولو پر مهال غوښتی و؛ولې داځل دامیر المؤمنین دوه مرستیالانو له وړاندې شتون لاره، دهغوی په لارښوونو دامارت ټولې جهادي ، سیاسي او فرهنګې چارې په عادي شکل روانې وې؛ له بلې خوا داسلامي امارت رهبري شورى هم په اسانه وکړای شول چې د ځنډ او کوم تاخیرپرته دامیر المؤمنین له دواړو نائبینو څخه یو یې ( شیخ الحدیث مولوي هبةالله اخندزاده حفظه الله) داسلامي امارت د نوي زعیم او امیر المؤمنین په حیث غوره کړي، یقیناً که منصورصیب له وړاندې اوپخپل ژوند کې دامارت دنائبینو ټاکلو ابتکار نه وای کړی طبعاً به دنوموړي دشهادت وروسته ستونزې اومشکلات وو.

په دې علاوه شهید منصورصیب رَحِمَهُ ٱللَّهُ دخپل امارت په لنډه دوره کې داسلامي امارت ټولې اداري او کمیسیونونه عملاً فعال کړل ،نن ورځ اسلامي امارت د پیاوړي او منظم سیاسي، جهادي ، علمي او اجتماعي ځواک په حیث دهېواد دننه او بهر شتون لري په ټولو برخو او مواردو کې دمنظمو پلانونو په رڼا کې کارونه روان دي، هرچا ته دخدمت او کار ځای معلوم دی، په دومره ترینګلو او ضیقو شرایطو کې دومره پراخ دسپلین او نظم رامنځته کول هیڅکله معمولي کارنامه نده، ددې ټولو ترشاه د منصورصیب او دنورونو مشرانو کلک عزم او قوې ارادې شتون درلود

په نظامي ډګر کې مجاهدین دومره پیاوړي ، منظم او غښتلي شول چې بسته ولایتونه فتحه شول او ځیني دسقوط سره مواجهشول پراخې سیمې او ولسوالۍ داسلامي امارت مجاهدینو و نیولې ،ورته لوی شمیر وسلې، جنګې شوبلې، رینجرې او ټانګونه په لا س ورغلل، ددښمن په مهمو مرکزونو او هډو باندې تندریز فدایې بریدونه ترپخوا لا منظم او منسجم شول

په سیاسي ډګر کې دقطر سیاسي دفتر که څه هم دنوموړي دنیابت په دوره کې خلاص شوی و، داسلامي امارت استازو دقطر دفتر له ادرس نه دنړۍ دبېلابېلو جهتونو سره دافهام اوتفهیم پالیسې په لړ کې دپام وړ لاسته راوړنې ترلاسه کړې، لکه دیو امریکایي بندي عسکر خوشي کولو په بدل کې له ګونتانامو زندان څخه داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال د څوتنو نومیالیو مشرانو زادیدل دسیاسي او دیپلوماتیک ډګر یوه ستره بریا ګڼل کېږي .په ورته ډول دافغانستان په اړه نړیوالو کانفرانسونو کې داسلامي امارت د استازو د دپرلپسې ګډونو د لارې وکړای شول چې دخپلو خلکو دمظلومیت غږ ترنړیوالو ورسوي او

په افغانستان کې شته پټ واقعیتونه بیرون ته ښکاره او څرګند کړي ،دمنصورصیب رَحِمَهُ اللَّهُ دامارت په دوره کې ددې بهیر پراخولو هڅې و شوې او په یو لړ مهمومجلسونو کې دګډون له لارې امارت وکړای شول چې دخپل ولس دحقه حقوقو نه دهر ډول ډار او ویرې نه په لا پرواهۍ سره دفاع وکړي اوله خپل دریځ او مسیر نه یو اینچ اومره هم په شارانشي.او نه په دې لړ کې نه د هیڅ کوم فشار اچونکي ارادې ته تیټ شول او نه دکوم لالچ ورکونکي دلالچونو په لومو کې ونښتل...

منصورصیب رَحِمَهُ اللَّهُ دخپل مدابرانه مشرتابه په دوره کې په سیاسي میدان کې یوه بله مهمه کامیابي دا ترلاسه کړه چې دافغانستان ټوول ګاونډي هېوادوته یې ډاډاو باور ورکړ چې دافغانستان اسلامي امارت هیڅکله دوی ته ګواښ ندی او نه د دوی په کورنیو چارو کې دمداخلې او لاسوهنې په باب کوم نیت لري او نه نورو هېوادو ته دخپل سیاسي فکر او ایډیا دصادرولو هوډ لري بلکې دهر هېواد سره دخپل هېواد دمصالحو اوګټو په پام کې نیولو سره دوستانه اړیکې لرل غواړي او ګاونډیان باید داسلامي امارت دبریاوو او سوبو نه کومه اندېښنه ونلري کنه دامریکا په مشر ی یرغلګر هېوادونه له پیل څخه په دې کوښښ او پروپاګند کولو لګیا دي څو اسلامي امارت او مجاهدین ټولې سیمې ته څه چې ټولې نړۍ ته دخطر په توګه وښیي او په اړه یې نړیوالو ته ناسم ذهنیت ورکړي لیکن منصورصیب رَحِمَهُ اللَّهُ وکړای شول چې په دې لړ کې دزیاتې

هوښیارتیا څخه په کار اخستلو دسیمې ټول هېوادونه دمختلفو زریعو او وسیلو له لارې قانع کړي چې دافغانستان اسلامي امارت نه نړۍ ته خطر دی او نه هم دسیمې دهېوادو ګټو او امنیت ته ګواښ دی دغه وجه ده چې نن په سیمه او نړۍ کې داسلامي امارت دموقف پزیرایي کېږي او هر بیطرفه هېواد په دې قانع دی چې امارت دهیڅیا لپاره ګواښ او خطر ندی بلکې دامارت په رهبرۍ کې جنګیدونکي مجاهدین دخپل هېواد دازادۍ لپاره جهاد کوي چې دادهغوی مشروع او منلی حق دی هیڅوک تري دخپل هېواد دازادۍ او خپل ولس نه ددفاع حق نشي اخستلی.

نو په ټوله کې ویلای شو چې شهید منصور صیب یو موفق، کامیاب، مدبر، هوښیار زیرک او زړورقاید و، چې اخر یې داسلامي امارت د جهادي، علمي او سیاسي صف د ښېرازتیا او سمسورتیا لپاره خپلې وینې هم نذرانه کړې او پخپل مشرتوب کې یې داسلامي امارت مجاهدینوته د ویاړونو ډک داسې داعتدال مسیر په میراث پرېښود چې ددښمن دډېر کوښښونو باوجود چې غوښتل یې طالبان او اما رت داسې وښیي چې ګواکې دټولې نړۍ ګټې او امنیت ګواښې دنړۍ ازاد هېوادونه او ولسونه دامارت په منځلاریتوب او حقانیت معترف دي او داسلامي امارت اسلامي او انساني کردار ته دقدر په سترګو ګوري ، نو له شک پرته دداسې یوسرلوړي او سرلاري قاید دقربانیو تاریخ او کارنامې خوندي کول د هر مجاهد قلموال دقلمي دیانت له

مخې مسؤلیت دی هغه باید دمنصورصیب مدابرانه کردار ته ژوند اوبښي ....

هو! یواځې دژوند انه دسوانح پاڼو په لیکلو ځانونه دمسؤلیت نه خلاص ونه بولي بلکې ددې ستر رهبر د افکارو، خیالاتو او نظریاتو خوندي کولوته متې راونغاړي څکه ژوندي قومونه دخپلو مشرانو افکارو، لارښوونو، او نظریاتو په رڼا کې خپل راتلونکی ځاري او ورته اړتیا لري بناً موږ دسوانح لیکلو ترڅنګ باید دمشرانو عمده لارښوونې، ویناوې او دبصیرت او فراست نه ډک افکار خوندی او راتلونکو نسلونو ته یې ورسوو په دې لړ کې دځرک وزیني مجلې لخوا دمنصورصیب دشهادت نیټې په مناسبت داختصاصي ګڼې چاپولو ګام دستاینې وړ دی خو متل دی وایي: په یوګل! نه پسرلی کېږي!! باید دې لړ کې ورته ګامونه نور هم پورته شي څو داسلامي امارت دمشرانو دکارنامو، خدمتونو، او افکارو څخه راتلونکی دیني او جهادي قشر اګاه اووسي په خاصه توګه د اسلامي امارت د ځوان نسل لپاره خو دخپلو اسلافو او اکابرود مجاهدانه سیرت او کردار پاڼو لوستل خورا ضروري دي ، په پای کې دعاء کوو چې الله تعالي دي دمنصور صیب رَحِمَهُ اللَّهُ په قبر رحمتونه نازل کړي ، بیرته پاتې درنې کورنۍ ته یې دجمیل صبر توفیق غواړو او داسلامي امارت اوسنیو مشرانو ته دنوموړي دمعنویت څخه د ډکې تګلارې پر لیکو دتلوالتجاء کوو...

په درنښت



# کاشکې ما لیدلي نه وای ستا نازونه

عبدالمتین عاطفي

نن مې د ذهن او خیال مارغه له یوې لسېزې هم ور وړاندې د ماضي تېولو هغو لوړو-ژورو ته ورالووت،چېرته چې ما له امیرالمؤمنین شهید ملا اخترمحمد منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ سره لیدلي کتلي او د خپل ژوندانه د یوې مهمې برخې حساس او نازک پړاوونه مې د هغه رَحِمَهُ ٱللَّهُ په مشري کې وهلي او طی کړې وو...

خو دا بیا زما د روابطو د نه پاللو او سیاسي او درایتي کمزورتیا او یا بدنصیبي وه،چې د دومره لوړ شخصیت سره د دومره نږدې انډیوالي سره -سره بیا هم کله کله په وروستیو کلونو کې په یو څه واټن کې لرې پاتې شوم، خو د خدای ج شکر کاږم چې د خپلو دواړو قائدینو) ملامحمدعمرمجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ او شهید منصورصیب رَحِمَهُ ٱللَّهُ (سره مې رسمي او غیر رسمي لیدنې څه چې ما یې تر قیادت لاندې کلونه-کلونه ورسره د یوه اندوال په څېر تیرکړې دي،چې د ځینو کتنو خاطرې به یې دلته وکاوږم:

-د منصور صیب په مشرتوب کې مې د افغانستان د طالبانو د اسلامي تحریک د پیل کېدو له کاله د امریکایي او صلیبي استکبار د یرغل تر مهاله لاندې خدمتونه کړیدي:

۱-د کندهار په هوایي ډگر کې د مخابرې د مسلکي په حیث ۲-د هرات په هوایي ډگر کې د انتقالاتو د مسئول په حیث ۳-دکابل په هوایي ډگر کې د نظام قراول د مسئول په حیث ۴- او په ((دلآرام)) کې د جگړې په لومړي کربنه کې د منصور صیب تر مشري لاندې د یوه مجاهد په حیث.

-له امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ سره زما اړیکه او لیدل هم د منصور صیب له برکته کېدل.

ما په ټول ژوند کې له خپلو مشرانو سره تشریفاتي مناسبات نه دي پاللي) په بل چا هم دا بدگماني نه کوم(تشریفات مې نه دي کارولي او ملامحمدعمرمجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ او ملا اخترمحمد منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ خو بیخې له تشریفاتي وضعیته بد وړل،نو اوس چې زما دواړه محبوب مشران راڅخه د اخرت په ډېر اوږده سفر تللي او په دې له حسرتونو ډکه نړۍ کې راسره نشته،نو اوس به هغوی ته څه طمعه او هیله وړاندې کړم...

زه چې د خپل شهید قائد ملااختر محمد منصور په اړه دلته څه لیکم دا لفاظي،خانه پُرې او مصنوعي ستاینه نه ده،بلکې دا زما د زړه خبرې،سترگو لیدلې او غوږونو اورېدلې خاطرې او زما له هغهرَحِمَهُ ٱللَّهُ سیره د رښتونې مینې یو څو په زړه پورې زرین یادگارونه او د هغه د جدایي د حسرت څو د او ښکو ځاځکې دي:

۱- زما له شهید منصورصیب سره په لومړۍ ځل پیرندگلوي هغه مهال وشوه چې موږ له قدرمنو استاذانو :شیخ الحدیث مولوي شهاب الدین دلاور-حفظه الله- او مولاناسیدقریش بابا رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه د تکمیل درجې کتابونه ویل،چې بېلو-بېلو مسجدونو کې او سیدلو خو دی به کله-کله د جمعې په شپه د خپلو هغو ملگرو پوښتنې راتلو چې له موږ سره یو ځای اوسیدل، نو دا اولنۍ پیژندگلوي مې که څه هم ورسره غیر مستقیم ا و د ده د انډیوالانو په وجه وشوه،خو باور وکړئ چې زما او د هغو ملگرو چې په یوه اطاق کې ور سره اوسیدل په چال- چلند کې چندان توپیر ندی کړی...

۲-( زمالیکوال) له هغه سره د امارت د اولو او دا راز د صلیبیانو له یرغل را وروسته کلونو کې بېلا بېلې لېدنې- کتنې شوي دي،چې

د يوې کتنې څه جزئيات چې زما په حافظه کې پاتې دې هغه دادي:

۳-زما (ليکوال) ورسره بله کتنه او له ده سره انډيوالي هغه مهال وشوه چې د افغانستان د طالبانو اسلامي تحريک د ملامحمدعمرمجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ په قيادت کې د کندهار له سنګسار څخه پيل شوی وو او زه ورسره د کندهار په لوی هوايي ډګر کې يو ځای او ملګری شوم،دا د تحريک د اولو شپو ورځو خبره ده، د شر او فساد په مقابل کې د طالبانو او زړورو مخلصو مجاهدينو بېرني فتوحات په ډېره چټکۍ سره مخ پر وړاندې روان وو، چې غربي ميډيا د طالبانو دې پرمختياوو ته د(طالبانو ډراماتيک) پرمختګ نوم ورکاوه...

مظلومو هېواد والو له پاټک سالاري او ملوک الطوائفي لعنت نه نجات موندلی وو. دا زما بلکې د هر افغان لپاره د ژوند هغه خوښې شېبې وې چې د کلونو-کلونو د اسلامي نظام د راتګ ارمان مو د يوه سپېڅلي ديني قشر) طالبانو( په لاس تحقق موندلی وو.

شهيدمنصور راسره په دې کتنه کې ښه له صميميت ډک چلند وکړ او ما ورته د اسلامي نظام د فتحې مبارکي ورکړه او د هغه رَحِمَهُ ٱللَّهُ شخصيت راته دومره محترم وبرېښېده چې بيا مې ورسره څو مسلسل کلونه انډيوالي شوه....

۴-له منصور سره مې بله کتنه هغه مهال وشوه، چې هغه په شبرغان کې د غدار او قاتل مالک ازبک له زندان څخه را خلاص شوی و...

۵ ـ د حاجي علاؤالدين آغا په موټرسايکل يوه ورځ مونږ دری ملګري سپاره شوو چې شهيد منصورصيب ليدلو ته ورتلو، رابطه آغاجان)علاؤالدين آغا( جوړه کړې وه، په لارې چې درې ملګري په يوه موټرسايکل سپاره وو،نو اغاجان عجيبه خبره وکړه هغه دا چې: "پخوا به چې مشر ملا صاحب يو موټر راکړ نو څه وخت وروسته به مو د ملګرو په نو م بل تر هغه ښه موټر ترې غوښت، خو نن دا دی- الحمدلله- درې ملګري په يوه موټر سايکل سپاره يو او خوشاله هم يو... "

دليدلو پر مهال له ډېر وخت ليدلو وروسته بياهم زه د شهيد منصور صيب په ذهن کې د پخوا په څېر پاتې وم، همغسې د پخوا په څېر يې له مينې او صميميت ډک مجلس له مونږ سره وکړ،تر دې چې ما د مجلس د مالګې او خوند برابرولو لپاره ځينې ټوکې هم د هغه په مخ کې وکړې، د دې پر ځای چې هغه مهربانه مشر راته ټنډه تروه کړي،بلکې دومره يې زما ګپو ته وخندل چې له ډېرې خندا به ټول سره بښوريده... تر دې زه په دې خبره وويريدم، چې هسې نه منصور صيب زما په ساده توب وخاندي...او ما ته يې په خندا کې وويل: ملا.... ! زمونږ او ستاسو هغه حکومت او دبدبه او موټران او رش و کش دې په ياد دي او اوس د خدای ج د دين په سر له هغه هرڅه تير شوو....

## د شهيد منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ ځانګړنې او لوړ اخلاقي معيارونه

**هلته چې امارت تحريک و او بيا هلته چې تحريک امارت شو**

شهيد قائد له هغو مشرانو څخه وو چې د اسلامي امارت د پيل له کلونو څخه بيا تر صليبي سپيره يرغل او له هغه را وروسته زيات کلونه يې په خپل هيواد کې پرلپسې ډول له داسې چيلنجوونکو، سختو ستونزو او ربړو سره مقابله وکړه،چې هغه ته يې د ډېرو اولوالعزمه قائدينو په فهرست کې ځای ورکړ،ميدان يې خوشې نکړ... نوموړي له حالاتو سره د مقابلې کولو يو ځانګړی مهارت او هنر درلود.

هغه يو متحرک او خوځند شخصيت و، له رکود او جمود څخه يې بد راتلل،هغه خپله مبارزه او قرباني تر يوه محدود زمان او ځانګړې مسئوليت پورې نه وه منحصر کړې،هغه که د افغانستان د ټولو هوايي ځواکونو عمومي قومندان، د هوايي چلند او توريزم وزير او د ملا محمدعمر مجاهد خاص معتمد او مشاور، که د رهبري شورى غړی، بيا د اسلامي امارت نائب او بيا اميرالمؤمنين و، او که يو مهال د کندهار ولايت جهادي مسئول و) چې دا مسئوليت نسبتاً پورتنيو مسئوليتونو ته وړوکی و (نو په دې ټولو اوږدو او امتحاني پړاوونو کې يې په پوره ايمانداري،اخلاص او د ذمه واري له احساسه سره د جهادي چارو دپرمختګ او د اسلامي نظام لپاره هلې-ځلې کولې او په ډېر اخلاص خپله اسلامي مبارزه پر مخ بېوله...

شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ له یو شمېر هغوکسانو څخه نه وو،چې د امریکایي استکبار له یرغل وروسته یې د اسلامي امارت په ځینو اقداماتو او پالیسیو بې ځایه او بې وخته اعتراضونه کول او ځانونه یې په مصئونو سوړو نیوسټل،چې له رسنیو سره په څرګندونو کې یې د خپلو ځانو او اولادونو د تحفظ په خاطر هسې معمیات ویل او توریېي یې کولې، غوښتل یې خپل ځانونه په دا راز کړنو سره دښمنانو ته یو څه ورنږدې وښیي،لکه چې دا کمزوري کسان په خپلو تېرو مبارزو او قربانیو پښېمانه وي،خو دمنصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ د سیاست په ډکشنرۍ( قاموس) کې په دې تاوجنو حالاتو کې هم د ناکامي او مایوسي لغت ونه موندل شو.

هغه د امیرالمؤمنین ملامحمد عمر رَحِمَهُ ٱللَّهُ په غیاب او د هغه له وفات وروسته هم د اسلامي امارت سیاسي او هم نظامي پالیسي په داسې کامیابه ډول وساتله،چې چاته تر ۲کلونو وروسته هم دا درک ونه لګېده،او داسې خلاء یې احساس نه کړه چې ګویا ملامحمد عمرم جاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ وفات دی...طالبانو ته دا فرق نه محسوسیده چې آیا د امارت رهبري د ملامحمدعمرمجاهد په لاس کې ده او که د منصورصاحب.

- ❖ شهید امیر په ډېرو سختو بحراني حالاتو، په ځانګړي ډول د ملامحمدعمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ له وفات وروسته کلونو کې له داسې سختو چیلنجونو او ننګونو سره په نره او مېړانه مقابله وکړه،چې د اوسپنې چیچلو ته ورته وه...
- ❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې کله د اسلامي امارت نائب امیرالمؤمنین و،نو اسلامي امارت په سیاسي ډګر کې ډېرپرمختګ درلود،چې په قطر کې د طالبانو د دفتر خلاصیدل او بیا له ګوانتنامو زندان څخه د طالبانو د پنځو هغو مهمو زندانیانو چې ۱۳کلونه یې د امریکا په جهنمي وحشي-زندان کې تیر کړې ول... د امریکایي اسیر (بوبرګډال) سره په تبادله کې راخلاصیدل او د امریکایانو له خوا اسلامي امارت ته د مذاکراتو لپاره وړاندېزکول... دا ټول د شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ هغه ابتکارونه او لاسته راوړنې وې چې د اسلامي امارت بېړۍ یې د نجات ساحل ته نوره هم نږدې کړه او اسلامي امارت ورسره په نړیواله کچه په سیاسي ډګر کې یو ځل بیا د یوه مطرح قوت په حیث تبارز وکړ...
- ❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ د کار اهل او نااهل کسان ډېر ښه سره پیږندل، ویل کېږي چې د سلطان محمود غزنوي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د واکمنۍ پر مهال د غزني ښار ته په سلګونو غلامان د څرڅولو لپاره وړاندې کیدل،چې د چا به یو غلام خوښیده او د چا بل، خو د سلطان محمود غزنوي جوهرشناس نظر په ټولو غلامانو کې حضرت آیاز رح خوښ او انتخاب کړ...
- ❖ شهید منصور-رَحِمَهُ ٱللَّهُ خبرو او سالمو مشورو ته به یې ښه غوږ نیوه، خپله یې خبرې یې لږ کولې خو له نورو یې ډېرې اورېدلې.
- ❖ هغه رَحِمَهُ ٱللَّهُ د اسلامي امارت د ډېرو مخورو او برجسته څېرو په موجودیت کې بیا هم وکړای شول(په خپل خدای ورکړي استعداد سره) ځان ملامحمدعمر مجاهد ته دومره ډېر نږدې کړي ،چې مشرملاصیب ورباندې د ژوندند تر پایه پوره باور او اعتماد درلود او شهید منصور بیا د خپل ژوند تر پایه په همدې باور کې تېر کړل او دا باور یې وساتلی شو،چې دا صفت په ډېرو لږو خلکو کې موندل کېږي
- ❖ عام خلک، نړیوال، د اسلامي امارت مجاهدین او په ځانګړي ډول د اسلام دښمنان په دې فکر ول،چې اسلامي امارته به یوازې د ملامحمدعمر مجاهد تر ژوند پورې متحد او مضبوط وي،خو که دا سړی شهید یا وفات شي نو بیا به په طالبانو کې بل داسې څوک پیدا نه شي چې د هغه خلاء ډکه کړای شي،بلکې طالبان به په بل امیر په داسې متحدانه او مخلصانه ډول راټول نه شي، خو -الحمدلله- د دې حدس او ټولو اټکلونو پرخلاف د اسلامي امارت مشران او کشران،نظامیان او سیاسیان او دبهرنیو مجاهدینو مشرانو هم ورسره په زیات اکثریت سره بیعتونه وکړل.
- ❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ د ملامحمدعمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په څېر امارت او مشرتوب د خپل ځان لپاره نه و غوښتې،بلکې په

دې ټاکنه خوابدی او ناراضه و او د بیعت لپاره یې) دمولانا نورمحمد ثاقب په وینا( لاسونه تخرګو کې ننویستلي او لاسونه د بیعت کولو لپاره نه وړاندې کول او ژړل یې،لکه چې ملامحمدعمر مجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ له امیرالمؤمنین ټاکل کېدلو وروسته ژړل تر دې چې خپل د اوږې څادریې په اوښکو لوند کړی و...

❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم د ملامحمد عمرمجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ په څېر امارت د خپل ځان،زامنو او وروڼو لپاره میراثي نه ګڼلو او نه یې په دې اړه کوم وصیت او سپارښتنه کړې وه...

❖ له امیرالمؤمنن ملامحمدعمر مجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ سره شهید منصور صیب نږدې اړیکي او اعتماد درلود تر دې چې مشر-ملاصاحب به کله-کله منصورصیب ته د کندهار هوایي ډګر ته د ځینو مشورو په اړه هم راتلو...

❖ زما ورسره چې ړومبی پیرندګلوي او کتنه وشوه نو هغه رَحِمَهُ ٱللَّهُ راته له ډېرو ښو صفاتو او کمالاتو ډک شخصیت وبرېښېده- هغه د ملګرو تر منځ په خپل تعامل کې بې تورپېره چلند کاوه...

❖ هغه رَحِمَهُ ٱللَّهُسخاوتمندانه طبیعت او له لو لویو لویو دندو سره سره متواضع شخصیت،خندان مخ،وېره ټنده،بشاشت اوظریفانه طبیعت درلود...

❖ اسلام او اسلامي امارت ته هغه ډېر وفادار و دا راز له ملګرو سره هم وفادار و،ملګري یې نه هېرول...

❖ هغه رَحِمَهُ ٱللَّهُ ځینې داسې بارز لوړ صفات، اخلاقي نمونې،مینه ناک تعامل درلود چې له ده پرته په نورو مشرانو کې د ده په پرتله لږ لیدل کېده...

❖ هغه لکه څنګه چې له عملي او اعتقادي نفاق څخه بري و،همداسې یې له سیاسي منافقت او دووه مخېتوب څخه هم بد وړل او ورته قائل نه و.

❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ بزدلي او جُبن نه پیرندل او هغه مداهن سیاستمدار هم نه و...

❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ لکه څنګه چې په ژوند مسلمانانو ته څومره محبوب و،همداراز له شهادت وروسته یې هم خپل محبوبیت او کرامت ښکاره کړ،چې بیلګه یې د هغه په مبارک روح پسې د مسلمانانو خیراتونه، د قرآن عظیم الشان ختمونه،دعاګانې او دغمرازۍ او تسلیت ډېر-ډېر پیغامونه د رهبري شورى او د ده د کورنۍ په نوم لیږل وو ...

❖ لکه څنګه چې د ملا محمدعمر مجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ له وفات وروسته، شهید منصور په قاطع اکثریت سره په متفقه ډول امیرالمؤمنین وټاکل شو،همدا شان د شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ له شهادت وروسته نوی امیرالمؤمنین شیخ الحدیث هبة الله اخندزاده -حفظه الله- هم ډېر ژر په همدې ډول سره امیرالمؤنین وټاکل شو...

❖ چې نوموړی په سیاست،علمیت، فقاهت او پوهه کې ښه نیک شهرت لري او د اسلامي امارت په مخکینۍ دوره کې یې لویې دندې درلولي چې مشرملاصاحب پرې دومره اعتماد درلود چې په یوه مهال یې دووه مهمې دندې ورته سپارلي وې چې هغه د ننګرهار والي کیدل او په کابل کې د وزیرانو د شورى د مرستیالي دندې وې.

❖ شهید منصور رَحِمَهُ ٱللَّهُ د اسلامي امارت له هغو باصلاحیته،باکفایته او بااعتماده مشرانو څخه و چې په یوه مهال کې هم د سیاسي او هم د نظامي پوهې او وړتیا څښتن و،چې ملا محمدعمرمجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته څو مهمې دندې څو مسلسل کلونه تر پایه ورسپارلې وې،چې هغه عبارت دی له: د افغانستان د هوایي ځواکونو عمومي قومندان) چې دا د دفاع وزارت د مرستیالي دنده هم ده( د هوايي چلند او توریزم وزیر، د ملا محمدعمرمجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ خاص مشاور او معتمد او بیا دهغه نائب کېدل. دا ټولې هغه مهمې دندې وې چې منصورصیب څو مسلسل کلونه سرته ورسولې او ملا محمدعمر مجاهدرَحِمَهُ ٱللَّهُ په منصورصیب داسې اعتماد درلود چې منصور صیب به په شپه او ورځ چې هر وخت غوښتل نو له مشر ملا صیب سره یې لیدلی شول.

❖ د افغانستان په ټولو هوایي ډګرونو کې چې پخوانیو حکومتونو جوماتونه، نه وجوړ کړې خو منصورصیب د خپل مسئولیت پرمهال په هر هواي ډګر کې یو-یوښکلی جامع

جومات او ورسره په ځینو هوایي ډګرونو کې د حافظانو لپاره دارالحفاظونه هم جکړ کړي وو.

❖ هغه ډېر سخي انسان و که له یوې خوا یې په بیت المال کې خیانت نه کاوه نو له بل پلوه یې محافظه کارې او داسې سپما هم نه کوله چې ځان مشرملاصیب ته پرې وفادار او امین وښیې،هغه ډېرو بې وسه مجاهدینو ته د واده کولو د لګښتونو لپاره هم روپۍ ورکولې...

❖ له ده ځخه ملا محمدعمرم جاهدرَحِمَهُ‌ٱللَّهُ زیات خوښ و...

❖ متواضع او عاجزانه مزاج یې درلود،هغه که په هر منصب او چوکۍ فائز و خو طبیعت او خصلت یې لکه د مدرسې د مهال یو طالب په څېر و.

❖ ظرافت،بشاشت او خوشطبعي یې په طبیعت کې پرته وه،تر دې چې په طالبې او اسلامي امارت کې د لوړو منصبونو سره -سره بیاهم له خپلو نږدې ملګرو سره دګپو او مطایبې بنداړونه کول،عجیب په خوندور انداز به یې خندل.

❖ سیاست او واکمنې له هغه ځخه خپل اصلي متواضع مزاج او نور ښه خصلتونه سلب نه کړای شول. ویل کېږي: ((دووه شیان دي چې په سړي د نه کړلو چارې کوي یو عشق او بل سیاست دی)).

❖ منصورصاحب ځه خپل نیک خصلتونه او مثبت کردارونه درلودل،چې ما ولیکل او بل د ملا محمدعمر مجاهد رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ نږدې ملګرتیا، ښه باور او تقرب هم د هغه د شخصیت په روزنه کې پوره ونډه درلوده، او د بېلا بېلو مهمو مسئولیتونو په دوران او داراز د اسلام د دښمنانو د هغه لور ته په توجه کولو سره او د هغه رح د مبارزې د مخنیوې په لړ کې بېلابېلو ستونزو او عکس العملونو هم د هغه شخصیت ته تبارز او د کمالاتو پر لور وده او ارتقاورکړه،یعنې د هغه له خپلو کمالاتو او معنویاتو سربېره، دحالاتو سره د مقابلې په لړ کې یې هم ډېرې وړتیاوې تر لاسه کړې،چې په یوه شخص کې د دومره کمالاتو رایوځای کېدل ډېر لږ موندل کېږي،نو منصور صیب ته په دې اړه جامع الکمالین ویلی شو ،چې یو یې خپل کمالات و او بل هغه کمالات چې له ملا محمد عمرمجاهدرَحِمَهُ‌ٱللَّهُ ځخه یې کسب کړې وو.

❖ هغه د قدرت، منصب،روپیو،موټرو او نورو مادیاتو شوق نه درلود...

❖ ما (لیکوال) د خپل علم او معلوماتو له مخې له چا ځخه نه دي اوریدلي چې شهید منصور صیب دپورتنیو درنو او مهمو منصبونو او د امیرالمؤمنن کېدلو صلاحیت او وړتیا نلري.

❖ هغه ته خدای جَلَّ‌جَلَالُهُ د طالبې،جهاد ،هجرت، اسارت، سخاوت، دحاجي کیدلو،غازي کیدلو او بالاخر د شهادت ویاړ هم ور په برخه کړ.

❖ شهید منصور د مجاهدینو کمیت ته نه کتل،بلکې د بېلابېلو دندو پر مهال یې ملګرو ته ذهنې او مفکوروي درسونه او تربیت هم ورکاوه او داسې ځوانان یې وروزل

❖ منصور صیب رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ په داسې عالي اوصافو او قیادي صلاحیتونو موصوف و،چې تابه فکر کاو، چې دې سړي به د اسلامي امارت له دورې ور آخوا هم د ژوند زیاته برخه په اداري ، سیاسي او نظامي کارونو کې تېره کړې وي.

❖ هغه رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ د خپلو دندو په لړ کې د طالبانو له واکمنې ځخه پخوا د مخکینیو حکومتونو له لوړ رتبه او ټیټ رتبه مامورینو سره هم ښه چلند اورویه کوله.

❖ د خپلو ټولو دندو پر مهال له په بېلا بېلو ولایتونو کې د خپل کار او مسئولیت په ساحو کې په پوره نظارت او ځارنه سره بې خوفه ګرځیدو،په وضعه به ژر مسلط او په خپل مسؤلیت به ډېر ژر پوهیده،محافظه کار او ریاکار نه و... هغه په خپلو کړو، وړو کې رښتینی و او له درووغو یې کرکه کوله، هغه امین و له خیانت او خائن انسان ځخه یې بد راتلل،هغه د عهد او معاهدې ډېره پابندې کوله او له وعده خلاف او عهدشکنو انسانانو یې بد وړل...

❖ هغه رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ ځوک د امکان ترحده نه خوابدې کول، داتصور هم نه کیده چې د خپل ولایت او د بل ولایت د مجاهدینو دې په امتیازاتو کې توپیر وکړي.

❖ د هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ په شخصیت، کړو- وړو، ناسته-ولاړه کې به چاهم دانه وي درک کړي چې هغه به د خپل منصب له امله ځان په نورو فوق ګڼلی وي او یاد ې ځان د ټولنې له خلکو ورک کړی وي، بلکې هغه ځان په ټولنه کې ورک کړی و...

❖ خو ددې ټولو کمالاتو سره سره یې په عامو غونډو کې ویناوې ډېرې لږ کولې.

❖ له چا سره یې دمنصبونو او اختیاراتو ترلاسه کولو په لړ کې کله هم کومه شخړه، مخاصمه، مشاجره او مقابله نده کړې.

❖ هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ به په اول ځل ملاقات د سړي زړه ته لاره وکړه، چې بیا به دې نه هېریده.

❖ دژوند ترپایه یې خپل شرعي او ملي لباس په تن کاوه.. ۴۳- هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ منصبونه چاته په تحفه ،رشوت، اوله چا څخه د خطر د احساس د مخنیوي په خاطر نه ویشل...

❖ هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ په یتیمانو، معیوبینو، کونډو او عامو بې وزلو مسلمانو خلکو ډېر مشفق او پرې خوږیده ،چې ددې شفقت یوه نمونه یې چې کله دی د ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ اَللّٰهُ نائب و، نو هلته یې په یوه کال کې له ۴۰۰۰ زیاتو یتیمانو معیوبینو، کونډو شهیدانونو او دهغوی وارثانو ته د پام وړ کافي کفالتونه پیدا او کومکونه ورکړل...

❖ د ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ اَللّٰهُ په زامنو، ورونو او خپلوانو مهربانه او ورته وفادارو، داراز یې د پخواني جهادي اتل مولوي جلال الدین حقانی -حفظه الله- او هم د جهادي او علمي شخصیت شهید مولوي نصرالله منصور په کورنۍ او زامنو هم ځانګړی لورینه درلوده.

❖ د خبرو او خطاب طرز یې ډېر عام فهمه، جالب، بې آزاره اودلنشین و، تر دې چې منصور رَحِمَهُ اَللّٰهُ په وروستي وخت کې د ځینو هغو مخالفینو لپاره هم د راپخلا کولو، د خدمت د زمنې مساعدولو او له مخالفت لاس اخستلو توصیه اوښه کلمات کارول، چې هغوی به په ده رَحِمَهُ اَللّٰهُ پسې ناوړه تبلیغات او افتراوې کولې...

❖ دملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ اَللّٰهُ له لوري منصور رَحِمَهُ اَللّٰهُ ته ورکړل شوې دندې د چا د سفارش، واسطو او د هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ د ښې چالاکي له امله نه وي بلکې داټول دده رَحِمَهُ اَللّٰهُ خپل ذاتي کمالات وه چې خدای جَلَّ جَلَالُهُ پرې لورولي و.

❖ هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ ته ورسپارل شوې بېلا بېلې دندې او مسئولیتونه خپل حق نه ګڼل، بلکې د یوې ذمه وارۍ په حیث یې قبول کړي و.

❖ هغه رَحِمَهُ اَللّٰهُ دځان د مخته کولو او مطرح کولو لپاره هیڅ وخت مشر ملا صیب رَحِمَهُ اَللّٰهُ ته کوم وړاندیز یا اشاره نه ده کړې او نه یې د بل د لرې کولو لپاره د چا شکایت مشر- ملا صاحب ته کاوه، غیبت، بهتان، درواغ د قدرت لالچ یې نه خپله خوښیدل او یی بل ته خوښول.

❖ د نړۍ د سترو شیطانانو: اوباما او جانکېري د منصور صیب شهادت د خپل ځان لپاره هغوی په خپل فکر د ځان لپاره یوه لویه لاسته راوړنه وبلله، چې دې څخه هم د منصور رَحِمَهُ اَللّٰهُ د لوړ شخصیت او دا چې هغه د صلیبیانولپاره یو بل ملامحمد عمر مجاهد و، پوره څرګندونه کېږي؛ ځکه چې دښمنان د هر چا په مرګ دومره خوښې نه څرګندوي.

❖ -خدای جَلَّ جَلَالُهُ ورته د ا مریکایانوپه لاس دشهادت مرګ ور نصیب کړ، هغه له اولې ورځې چې د اسلامي نظام د راوستلو او په هیواد کې د مفسدو عناصرو د له منځ وړلو لپاره د قرباني میدان ته راوتلی و نو له هغې ورځې شهادت د ژوند یوازې ارزو او لوړه هیله وه چې همداسې خدای جَلَّ جَلَالُهُ خپلې هیلې او ارزو ته ورساوو...

د اسلام دښمنانو د داسې جامعو صفاتو څښتن شخصیت کله په مسلمانانو لوریده، نو یې له ډېرو هلو ځلو او شیطاني کړیو له استخدامولو وروسته د اسلام په دغه عظیم سالار هوایي بریدوکړ او هغه یې د ۱۴۳۷هق کال د شعبان د میاشتې په۱۴مه نېټه د شهادت لوړ مقام ته ورسا وه.

روح یې یې ښاد او لارویان یې همداسې باثباته او خپلو موخو ته ژمن اوسه!

انالله وانا الیه راجعون

# #انتحاری_نیستم

#راشد_مبارز

انتحــاری ام مخــوان، مــن انتحــاری نیســتم!
سر دهــم مــن بهــر دیــنم، انفجــاری نیســتم!

مــن بــه بــازار الهــی بــرده ام کــالای جــان
بــا خــدا کــردم تجــارت، مــن قــماری نیســتم!

دوســت دارم جــان خــود بــا خیــل فرزنــدان خــود
خــوب وبــد دانــم بسـی، از عقــل عــاری نیســتم!

مــن ز فرزنــدان و جــان خــود گذشــتم بهــر دیــن
ره بــه استشــهاد بــردم، انتحــاری نیســتم!

غــرب مــی ســازد اتــم از بهــر محــو مســلمین
گــر نگــردم بمــب بهــرش مــرد کــاری نیســتم!

مــن نمــی خــواهم قــراری زیــر چــتر کــافران
ورنــه مــن هــم دشــمن امــن وقــراری نیســتم!

مــن بــزور از خــاک خــود بیــرون کــنم نســل قِــرد
چــون ز نســل خالــدم، مــن اهــل زاری نیســتم!

قصــه‌هــای مفــت ســیافی رهــاکن، بِــین کــه مــن
عــالم دیــن نیســتم؟ یــا اینکــه قــاری نیســتم؟

مــن اَعِــدُّوْا مَااسْــتَطَعْتُمْ خوانــده ام از قــول رب
زان ســبب در قصــه ی ســیاف واری نیســتم!

مــن اگــر گــویم کــه سر را بــر سر دیــن مــی دهــم
درعمــل ثابــت کــنم چــون تــو شــعاری نیســتم!

قهرمــان عشــق را «راشــد» ســِتا باشــعرخویش
شــمس استشــهاد هســتم انتحــاری نیســتم!

# ګلځونه

# د منصور مینه....

ثاقب خپلواک

چې یې د عشق راج کې دی پروت نوي بدلون د مینې
د منصور مینې را ژوندی کړی ، ښکلی یون د مینې

چې یې د دار پړی ، بدل کړ ، د سره اُور په لمبو
مینې د دار نه یې جاج واخیستی ، پاځون د مینې

ربه ! جنت ورکړی ، د سوي معصوم تن په بدل
نوي ژوندون یې رنګ اخیستی له ژوندون د مینې

د وینو پور به یې غازیان ، نن له راغلو اخلي
منصور خپل کړی ، د ښکلا، اعزاز پَرُون د مینې

په خلیلي ، تکل وئیلی یې سره اُور ته لبیک
ده یې جوړ کړې ، د لمبو غیبر کې قانون د مینې

د یاد رمې یې ، د ثاقب د زړه پر دښته ګرځي
د خیال شپیلی کې به یې ستایي لکه شپون د مینې

## مفتون صاحب غرق اوپرق

شان شوکت کې دچینارپه شانته دنګ یم
خوی خصلت کې دګلاب دګل په رنګ یم

شرنګ دتوروزولنو پرمامیین دی
زه مستي لرم دسپینو توروشرنګ یم

په غلامو عاداتونو عادت نه یم
غورځومه دغرورغرونه غورځنګ یم

زه دمرګ هیبتی سترګوکې ژوند وینم
هسې نه چې په دی خپل ژوند پوری تنګ یم

په سینه دخپلواکی لیلی ته پروت یم
دباروتو په اورتورلکه لونګ یم

غیرتي یم تړنګ ټکورسره تضاد یم
دغفلت پردې شلوم دتندرکړنګ یم

دتاریخ اسمان کې ستوری دسبا یم
پیژا ند لی دې تمام جهان په ننګ یم

په یوه معنا پیغام دخوشحالی یم
خوپه بله مغنا بیا دخطر زنګ یم

په مغروروبادشاهانو مې قلنګ دې
زه دستړې زمانې داسې ملنګ یم

پکې راز دمینه ناکې زندګی دې
په دې هیله دتور جنګ سره په جنګ یم

دمفتون زړه دترخو خا طرو کور یم
زه دګران افغانستان په شانته رنګ یم

## غزل

ستا د اوښکو سره زما سترګې لمدې شوې
ستا د زړه خبرې زما زړه کې راشنې شوې

په پر هر زړه دې زما زړه خبر دارشو
ستا د اوښکو په زور زما ډکې لېمې شوې

سورو خولو کې ګرانه وایه څه در وشوه
له کوم لوري د دردو پر تا خرې شوې

کومو سترګو د نظر در باندې وار کړ
کومې سترګې لا پر تا نیغې تېرې شوې

ستا دردونو مې خوبونه یرغمل کړه
پر سودا مې کلونه ورځې شپې شوې

زما د هیلو سهارونه مازدیګر شوه
د هجران سختې شپې پر ما اوږدې شوې

د سکوت مهر مې بنده راته خوله کړه
راروانې پر رخسار اوښکې تودې شوې

زه یوازې پر لیکنو بریالی شوم
پر لیکلو د دردومې ګوتې مړې شوې

پوهه او هوښیاري بهترینې همغږي دي او تنها هغه څوک له دې څخه برخمن کیدای شي چې په هر قدم کې د عقل له قوانینو څخه پیروي وکړي، هغه څوک چې له دغه خدایي ورکړې څخه بې برخې وي هم خپل کور او هم ټولنه د تباهۍ لور ته بیایي. "افلاطون"

آیا د مجاهدینو عمري عملیاتو

# خپل اهداف ترلاسه کړل؟

خالد افغان زوی

تیر کال د حمل د میاشتې په ۲۴ مه نیټه چې د اسلامي مجاهدینو عمري عملیات اعلانول نو ددې عملیاتو د پیل په اړه په خپره کړې اعلامیه کې یې وعده کړې وه چې ( ددې عملیاتو په توسط به ،دښمن په ټول هیواد کې په تهاجمي شکل تربریدونو لاندې ونیول شي،استشهادي اونفوذي عملیات به ددښمن حساسي اوخوندي سیمي ولړزوي او ټول مضر- چارواکي به یې په چریکي بریدونو کې په نښه شي او له هرې مشروعې ممکنه وسیلې نه په استفاده به ددښمن د خپلو او له پښو غورځولو هڅه کیږي ترڅوبې خارجي ملاتړي او داخلي مزدور وسلوال په ستومانوونکې او مورال وژونکې جګړه کې را ګیر او د سیمو پرېښودو ته اړ ایستل شي اوپه مفتوحه سیمو کې دښه امنیت په ټینګولوسره ولس ته دښه ژوند کولوزمینه مساعده شي.)

اوس چې عمري عملیات پای ته رسیدلي او د مجاهدینو لخوا نوي ( منصوري عملیات) اعلام شوي دي. پوښتنه داده چې آیا عمري عملیاتو خپل ټاکلي اهداف ترلاسه کړل؟ آیا په دې عملیاتو کې رښتیا هم مخالف جهت وټکول شو؟ خارجي یرغلګر ستومانه او دداخلي هغو مورال ووژل شو؟ په لاندې لنډه ارزونه کې د همدې پوښتنو په ځواب پسې د تیر کال د عمري عملیاتو خبري ډیټا راسپړو او مهمې نکتې یې را په زړه کوو.

**خبرساز پیل او پای**

د مجاهدینو د عمري عملیاتو یوه ځانګړنه دا وه چې د کال په تر ټولو حیرانوونکي برید یې دا عملیات پیل کړل او په تر ټولو زیان اړوونکي هغه یې پای ته ورسول. تیر کال د حمل په ۲۴ مه چې مجاهدینو عمري عملیات اعلام کړل. څو ورځې بعد د حمل په ۳۱ مه یې د کابل په زړه کې داستخباراتو په لسم ریاست یو داسې هیښوونکی برید وکړ چې تردې وړاندې دوی په کابل کې داسې اغیزناک برید نه و کړی. د استخباراتو لسم ریاست چې د حکومتي لوړپوړو چارواکو د محافظت دنده یې هم په غاړه درلوده د استخباراتو تر ټولو مهم مرکز بلل کیده چې مجاهدینو وکولای شول د یوه درانه موټر بم برید په توسط یې له خاورو سره برابر کړي. په دې برید کې تر ۶۰ زیات استخباراتي کارمندان ووژل شول چې ډیری یې لوړپوړو چارواکو ته منسوب پوځیان او د هغوی ګارډان ول.

د عمري عملیاتو د پیل غوندې پای هم خبرساز و. مجاهدینو د عمري عملیاتو په وروستیو ورځو کې د ۱۳۹۶ لمریز کال د ثور په لومړۍ نیټه د هیواد په شمال بلخ کې د شاهین قول اردو په مرکز یو داسې هیښوونکی برید وکړ چې په بې سابقې ځاني تلفاتو سربیره یې ټول حکومت ته ټکان ورکړ او لا یې هم اغیزې یو په بل پسې رابرسیره کیږي.

د طلوع نیوز د خبر له مخې د شاهین قول اردو په برید کې له ۲۶۰ زیات عسکر چې زیاتره یې کوماندویان دي وژل شوي دي.د مجاهدینو ددې برید تاو تر کابله ورسید او په نتیجه کې یې دفاع وزیر او د پوځ لوی درستیز هم له خپلو

منصبونو وغورځیدل. د برید په پایله کې د ځلورو قول اردو مشرانو په شمول ګڼ پوځي چارواکي له دندو معزول یا تبدیل شول.د بلخ شاهین قول اردو قومندان جنرال مومند کتوازی له ګڼو نورو پوځي مشرانو سره څارنوالۍ ته معرفي او له وظیفې وشړل شو. دې برید په حقیقت کې داشرف غني د حکومت اردو د قیادت له نیستۍ سره مخامخ او د پوځ په روحیه یې تر ټولو مرګانۍ ګوزار وکړ.د نظامي تحلیل ګرانو په نظر دا برید به د امریکا تر لاس لاندې داخلي اردو د سربازۍ ګیرۍ په برخه کې هم له جدي ستونزه سره مخ کړي او بیا به افغانان حاضر نه شي چې خپل ځوانان هغه پوځ ته ولیږي چې په ډیر شدت سره ځپل کیږي.د عمري عملیاتو دا وروستۍ بریدپه حقیقت کې د مجاهدینو د کال تر ټولو لویه پوځي لاسته راوړنه وه چې ټول اړخونه یې لا هم نه دي تحلیل شوي.

پوځي لاسته راوړني او د سیمو نیول

د عمري عملیاتو په لړ کې مجاهدینو د هیواد په لر او بر کې ډیرې سیمې ونیولې ګڼ پرمختګونه یې وکړل. ددې عملیاتو په لړ کې په دې سربیره چې مجاهدینو د کندز ولایت مرکز هم د لنډ وخت لپاره تصرف کړ له دې علاوه یې ګڼې ولسوالۍ هم د حکومت له ولکې وایستې. مجاهدینو د کندهار غورک، نیش او ښوراوک ولسوالۍ ونیولې او د کندهار او روزګان تر منځ په غځیدلې لاره یې د ۲۸ حکومتي پوستو له لمنځه وړلو وروسته په دې ټوله ساحه کنترول راوست.په روزګان کې له ترین کوټ له ښار پرته د مرکز ټول مربوطات طالبانو ونیول د عمري عملیاتو په بهیر کې په روزګان کې مجاهدینو تر ۱۰۰ زیاتې پوستې او له ۱۵ زیاتې لویې قرارګاوې نیولي دي په مرکز ترین کوټ کې مجاهدینو ډیر غنائم هم نیولي دی چې د نیول شوو رینجرو او شوبلو مجموعي شمیر له ۷۰ زیات دی ۱۰ غټ موټر ۷۰۰ میله مختلف النوع وسلې چې تر زیکویک او دهشکو پورې وسلې هم په کې شته د مجاهدینو لاس ته ورغلې.په روزګان کې مجاهدینو په ولسوالیو کې هم پرمختګ وکړ د چورې په ولسوالۍ کې ۲۰ پوستې او پنځه قرارګاوې مجاهدینو ته تسلیم شوې اوس ددې ولسوالۍ یوازې مرکز له حکومت سره پاته دی د دهراوود ولسوالۍ ته غزیدلې لار چې د کوتل مورچې له سیمې تیره شوې او ستراتیژیک اهمیت لري هم د مجاهدینو تر کنترول لاندې راغله او اوس حکومتي ځواکونه په داهراوود کې محاصره دي.

په هلمند کې د عمري عملیاتو زور تر هر ځای زیات و مجاهدینو په دې ولایت کې د خانشین او ناوې ولسوالۍ مکملې ونیولې، د ګرمسیر ولسوالي چې پخوا په کې مجاهدینو یوازې چریکي فعالیت کولای شوای سږکال مجاهدینو وکولای شوای چې ټول اطرافي ساحات یې د عسکرو له شتون څخه تصفیه کړي په دې سربیره د ګرشک ، مارجې اوسنګین په مربوطاتو کې هم مجاهدینو پام وړ کارونه کړي ددښمن ګڼې پوستې یې له منځه وړې او بیا بیا یې درانه زیانونه ور واړول. په تیر کال کې دمجاهدینو بل ستر پرمختګ د کندهار او لښکرګاه په لویه لاره کنترول راوستل و چې بشپړه یې په کنترول کې کړه.د امریکا د نیویارک تایمز ورځپاڼې په حواله وړم کال امریکایي پوځ د هلمند په میوند قول اردو سل میلیونه ډالره اضافي خرچه وکړه ترڅو دمجاهدینو د حملو مخه ونیسي. مګر د کال په اوږدو کې نه یوازې مجاهدینو په ټولو جبهو کې پرمختګ وکړ، د کال په وروستیو کې د سنګین تر ټولو مهمه ولسوالي هم مجاهدینو ونیوله او د هلمند د جنګ قومندان جبار قهرمان تر دې حده روحیه وبایلله چې په پای کې یې له دندې استعفاء ورکړه.

د هیواد د جنوب لویدیځ غوندې په جنوب ختیځ کې هم مجاهدینو ډیر پرمختګونه وکړل په بدخشان کې د خاش، یمګان،تګاب ، بهارک او کران و منجان په ولسوالیو کې مجاهدینو ډیرې سیمې ونیولې، او د څو ولسوالیو مراکز یې هم تر خپل تصرف لاندې راوستل.په ځنګلوري تخار کې خواجه بهاء الدین، درقد او خواجه غار ولسوالیو کې مجاهدینو پرمختګونه درلودل، په کندز

کې خو مجاهدینو دومره پرمختګ درلود چې د ولسوالیو سربیره یې یو ځل د ولایت مرکز هم تر خپل تسلط لاندې راوست.په بغلان کې تاله و برفک ولسوالي مجاهدینو ونیوله او د هنه غوري، مرکزي بغلان او پلخمري په مربوطاتو کې یې ډیرې سیمې له حکومتي قواوو تصفیه کړې.

د هیواد په ختیځ کې د عمري عملیاتو په لړ کې په لغمان او نورستان سربیره د کابل په شاخوا سیمو کې هم مجاهدینو پرمختګونه درلودل. په تیر کال کې د پکتیا جاني خیل او د پکتیکا اومنه ولسوالۍ د مجاهدینو لخوا ونیول شوې په غزني کې د واغز ولسوالۍ مرکز د لنډ وخت لپاره مجاهدینو ونیو. دغه راز په سرپل، فاریاب،بادغیس او نورو ولایاتو کې هم مجاهدینو ډیرې سیمې له حکومتي اربکیانو نیولې.

**د پای خبره**

په پای کې دا ویلای شو چې د مجاهدینو د تیر کال عملیات بریالي و ځکه د اشرف غني په مشرۍ ګډ حکومت یې لړ نور هم را محاصره او واکمني یې تر ښارونو ور لنډه کړه. نړیوالې احصایې هم ښیي چې په تیر کال کې مجاهدینو په داخلي او خارجي عسکرو تر ټولو ډیرې حملې وکړې. دداخلي عسکرو د حکومتي احصایو له مخې په تیر کال کې څه کم شل زره یوازې د اردو عسکرو ته مرګ ژوبله اوښتې چې دا هم د هرکله په نسبت بې ساره وه. بل اړخ ته څه موده وړاندې د دفاع وزارت لخوا د تیر کال د پوځي وضعیت په اړه راپور خپور شو. په دې راپور کې راغلي چې په تیر کال کې دمجاهدینو لخوا د یرغلګرو او د هغوی د ګوډاګیانو په ضد ۲۳ زره عملیات چې جبهه یي تعرضي بریدونه، چریکي حملې، انفجارات او د درنو وسلو حملې پکې شاملي دي تر سره کړي دي.

د دفاع وزارت په راپور کې راغلي چې مجاهدینو تیر کال د ۹ ولایاتو مراکز د سقوط له خطر سره مخامخ کړل دغه راز د ګڼو نورو ولایاتو مراکز لا هم د محاصرې په حالت کې قرار لري او د سقوط له ګواښ سره مخامخ دي. په ولایتي مراکزو او ولسوالیو سربیره د کابل رژیم د اعتراف له مخې مجاهدینو په تیر کال کې د افغانستان د دریو مهمو لویو لارو د بشپړ نیولو هڅه هم کړې او ددې لارو په اطرافو کې یې نفوذ زیات شوی دی.

دا ټول څه ددې ثبوت دی چې د مجاهدینو د تیرکال عملیات بریالي و او دوی په کې خپلو اهدافو ته رسیدلي دي.





# د شهید پلار ته ځالی

**لیکوال: مفتي عبد الرشید**

ګران پلار جانه ! خبر شوم چې زوی مو په هغه ستر ویاړ ونازېد چې رسول الله مبارک یې داسی تمنا کړې وه »لَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ، ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ، ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ« (رواه البخاري .(ژباړه: زه دا خوښوومه چې د الله تعالی په لار کې قتل (شهید) کړی شم، بیا راژوندی شم، بیا شهید، بیا ژوندی او بیا شهید کړی شم .ګران پلار جانه ! د رسول الله مبارک – صلی الله علیه وسلم – د ریښتونی قول له مخې د شهید روح به د شنو مرغیو به ججورو کې د جنت سیرونه کوي او د مړو څخه صرف شهید به داسی وي چې د دی لپاره به دنیا ته د راتګ تمنا کوي چې بیا د شهادت له مرګه خوند واخلي، همدا راز شهید زوی مو په سترو ویاړونو ونازید چې الله رب العزت به د کورنی د ۷۰ ګناهګارو د شفاعت اختیار ورکړي {د حدیثو په کتابونه کې د شهید او شهادت بې شمیره انعامونه او فضیلتونه ذکر دي، خو دلته د صبر په اړه څو ټکي لیکم .{ګران پلار جانه ! په عامه اصطلاح کې اولاد د زړه ټوټه بلل کیږی خو الله رب العزة ورته قرآن شریف کې فتنة یعنی امتحان ویلی دی. قال الله تعالی :﴿ إِنَّمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَأَوۡلَٰدُكُمۡ فِتۡنَةٞۚ وَٱللَّهُ عِندَهُۥٓ أَجۡرٌ عَظِيمٞ ﴾ [سورة التغابن: ۱۵ .[همدا راز خوږ نبی پاک صلی الله علیه وسلم فرمایي: « الْوَلَدُ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ» (رواه أحمد وابن ماجه والطبراني) یعني اولاد د بخل او بزدلی سبب ګرځیږي .څکه ډیر کرتې د اولاد له وجې څوک مال نه خرڅ کوي او نه هم د دوی له وجې څوک جهاد ته تللی شي، امام طبري او نور مفسرین –رحمهم الله – د پورته آیت په تفسیر کې لیکي: چې چا د اولاد په مخالفت کې د الله تعالی اطاعت وکه هغوی ته به اجرعظیم یعني جنت ورکړی شي . ګران پلار جانه ریښتیا هم د زړه ټوټه مو بیله شوی چې فراق به یې ستاسو د پاره درووند وي خو دا چې دنیا دارالامتحان دی او د انس و جن پیدائشت د عبادت لپارا شوی دی. قال الله تعالی : ﴿ وَمَا خَلَقۡتُ ٱلۡجِنَّ وَٱلۡإِنسَ إِلَّا لِيَعۡبُدُونِ ﴾ .همدا راز الله رب العزت مرګ او ژوند د دی لپاره پیداء کړی چې بندګان اوګوری چې کوم یو یې ښه اعمال ترسره کوي .قال الله تعالی: ﴿ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلۡمَوۡتَ وَٱلۡحَيَوٰةَ لِيَبۡلُوَكُمۡ أَيُّكُمۡ أَحۡسَنُ عَمَلٗاۚ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡغَفُورُ﴾ . ګران پلار جانه ! کله چې د انسانانو پیدائش د عبادت لپاره شوی دی او هر نفس لره به مرګ هم راځی کما قال الله تعالی کل نفس ذائقة الموت در حالیکه خپله د مرګ ژوند پیدائش د دی لپاره شوی چې د بندګانو اعمال وکتل شي او د سوره تغابن د آیت له مخې اولاد د الله تعالی د امتحانونو سبب دی نو هر کله چې زمونږ د مال جان او اولادو اصلی مالک الله تعالی دی نو د مال نقصان او د زامنو مرګ ګویا الله رب العزت خپل ملکیت له مونږه واخیستلو دا چې مجازی مالکان یې مونږه وو نو اوس کامیاب هغه خلک دي چې په دی امتحان کې بریالي شول د دی امتحان کامیابی الله رب العزت داسی ذکر کړی ده ﴿ وَلَنَبۡلُوَنَّكُم بِشَيۡءٖ مِّنَ ٱلۡخَوۡفِ وَٱلۡجُوعِ وَنَقۡصٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡوَٰلِ وَٱلۡأَنفُسِ وَٱلثَّمَرَٰتِۗ وَبَشِّرِ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ ]سورة البقره آیت ۱۵۵ .[د دې نه وړاندی آیت کې د شهید ذکر وشو چې د صبر اعلی مقام یعنی شهادت یې حاصل کړی دی مفسرین حضرات فرمائی په دی آیت مبارکه کې د کموالی د ﴿ وَٱلۡأَنفُسِ ﴾ نه مراد د اولاد او خپل خپلوانو مرګ دی همدا راز امام شافعي رح فرمائی چې د الانفس نه مراد مرضونه او د ثمرات نه مراد اولاد دی یعنی د مومنانو امتحان به کله د اولاد په مرګ هم اخیستل کیږی حال دا چې مرګ یوه اټله فیصله ده چې هر ساه لرونکی شی لره به یو وخت راځي نو کامیاب دی هغه خلک چې د مصیبت په وخت انا لله وانا الیه راجعون او وائی مفسرین فرمائي چې د دې نه د دری خبرې معلومې شوې :۱) زمونږ مال او جان هر څه د الله تعالی ملکیت دی کله چې په دی خبره د انسان پوره یقین راشی نو بیا په کار دا ده چې په هیڅ قسمه مالی او ځانی تلفاتو غم او ژړا ونکړی شي ۲ (د دنیا تکلیفونه واړه وي که غټ ټول عارضی او عنقریب پری ابدی زوال راتلونکی دی پس کامیاب هغه خلک دی چې به دی عارضی تکلیفونو یې صبر وکه ۳ (سریېره په دی بیا هم معلومه شوه چې د دنیا مالی او ځانی تلفات بیا هم عبث نه دي بلکې د همدی عارضی شیانو د زوال په بدل کې د آخرت تلپاتی انعامونه او ثوابونه شته دی د وروستی آیت کې د صبر تفصیل داسی بیانوی چې چا په امتحانونو صبر وکه هغوئ ته د دری خبرو خوشخبری ورکول کیږی اول د الله تعالی خاص رحم او عنایت به پری وي دویم د الله تعال رحمت به پری وي دریم هدایت به یې نصیب شي ابو هریره رض د خوږ نبی پاک صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړي : حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل په مومنانو به هر وخت مصیبتونه راځی کله جانی نقصان او کله مالی تاوان خو دا به یې د ګناهونو کفاره ګرځیږی تردی چې الله پاک ته به داسی حال کې ورشی چې د ګناهونو څخه به بلکل پاک وي ګران پلار جانه! زوی مو د نیا په امتحان کې بریالی او د آخرت له ستر ویاړشهادته برخمن شو الله دی وکړی چې تاسو هم د صبر جامې پر تن او د اولاد په هکله دی امتحان کې بریالی شئ څکه د رسول الله مبارک ارشاد دی چې د قیامت په ورځ به یو داسی کس حاضر کړی شي چې نیکیانی به یې اولادو ختمې کړي وي پای

# د خوګیاڼو له ګلشنه رژیدلی ګلاب

**لیکوال رشید حبیب زی**

اشغال د روس وه که د امریکا د افغانانو په متیو آباد او هم د افغانانو په متیو یو پوره ریز مریز او بل د شړیدو په وروستی دیوال ولاړ دی ځکه د زرګونه کلو میتیره لری دنیا څخه راغلی یرغلګر هیڅ کله دومره توان نه لري چې په افغانستان قبضه وکړي ، په خپل سری ډول د افغانانو په کورونو چاپې ووهی عام هیوادوال او د دوئ په اصطلاح تروریستان شهیدان او یا زندانیان کړي تر څو د افغانستان له منځه څخه یې داسی اشخاص رهبری او ملګرتیا ونکړي چې د افغانانو کور کلی ورته معلوم وي او د افغانی دود او کلتور څخه په کامله معنی برخمن وي تاریخ داسی ډیر وګړي او ځینی بسته کورنئ په دی خیانت ثبت کړي چې د څو ډالرو په بدل یې د افغانستان په ورانولو او د افغانانو په شهیدانولو کې له یرغلګرو سره لاس یو کړی چې راتلونکی نسل به یې د افغانیت پر تنده له تور داغ څخه په بل تعبیر ونه پیژنی او متأسفانه چې همدا هغه وګړي دي چې اشغال یې پر متو شتون او دوام وموند خو دا هم د افغانانو لپاره د ویاړ ځای دی چې داسی وګړی یې د تاریخ یوه ډیره وړه برخه ده ځکه د افغانانو تاریخ د غزنوی او احمد شاه بابا پر بچو ډک دی هغه وګړي او کورنئ چې د اشغال په خلاف یې یو وار بیا د غزنوی او احمد شاه بابا نومونه راژوندي کړ او اشغال یې پر متیو ریز مریز شو تاریخ د نومیالو په نوم ثبت کړ چې راتلونکې نسل به یې د ځان لپاره ویاړ او افتخار بولي د همدی کورنیو له قطار څخه یوه هم د خدرخیلو د قوم د مرحوم اول سید کورنئ ده چې افرادو یې د هر اشغال په ټوټه کولو کې کامله ونډه واخیستله او ځانونه یې تاریخ کې د نومیالو په نوم ثبت کړ د مرحوم اول سید کورنئ یو له هغو کورنیو څخه ده چې د افراد یې د اشغالګرو خلاف د تری تم کیدو، شهادتونو ،زخمونو او په کلونو کلونو د زندانونو تیرولو ځانګړتیاوی لري .

د ننګرهار ولایت د خوګیاڼو ولسوالئ دا اسلام پاله شهید پروره کورنئ یو وار بیا هغه مهال د اشغالګرو او د دوئ د غلامانو د سترګو ازغی وګرځیده چې یوه تنکي ځوان یې د خوګیاڼو ځمکه ورته سور اور کړله دا تنکی ځوان مولوی محمد ابراهیم نومیده چې په محمد سهیل یې شهرت درلود مولوی محمد ابراهیم سهیل له نن څخه ۲۸ کاله مخکې هغه مهال دنیا ته سترګی وغړولی چې کورنئ یې د روسی ښکیلاک له وحشتونو څخه ګاونډی هیواد ته هجرت کړی وه د مولوی صیب له پیدائشته پس د څو میاشتو په تیریدلو روسی ښکیلاک شکست وخوړ او ټیټ سر له هیواده ووتلو ځرنګه چې د مولوی صیب د پیدائشت کال د ښکیلاکګرو د شکست کال وو الله دی وکړی چې د شهادت کال یې د امریکائی ښکیلاکګرو د شکست کال شی او دا یرغلګر هم شکست خوړلی ټیټ سر له هیواده په وتلو مجبوره شي مولوی محمد ابراهیم سهیل لومړئ زده کړی له خپل کور څخه په داسی وخت کې پیل کړی چې کورنئ یې له خپل مال او متاع څخه لری د غربت او هجرت په ډیرو کمو وسائلو کې ژوند تیرولو مګر د مولوی صیب د زده کړی مینې دی ته پرینښود چې علمی سفر دی په نیمه لار کې پریدی هم هاغه وه چې مولوی صیب به د جمعي په ورځ مزدوری کوله او نوری ورځې به یې خبل درسونه وئیلی چې په دی ډول د علمی سفر اخری

منزل ته ورسید او د سیمی او نړۍ په کچه لـه مشـهورې دینـي مدرسـې حقانیـه دارالعلوم څخه یـې د حدیثو دوره بشپړه کړه او په ممتاز درجه یې د فراغت ویاړ تـر لاسـه کـړ دا چـې د مولـوی صـیب د پیدائشته تر څوانۍ پوله هغه زمانـه وه چـې پـه ګـران هېـواد افغانسـتان کـې د یرغـل خبرې روانـې وې نـو دلتـه د ګران هېواد د اصیلو بچیو په ذهنونو کې هم وار لـه مخـه د جهاد شوق او مینې ځـای مونـدلی ؤ .تـل به هر افغان پلار او افغانی مـور خپلـو زامنـو ته په زانګو کې د جهاد او تکبیرونـو نعـرې زمزمه کولې نو پایله به یی همدا وه چې کلـه به ماشوم د څوانۍ پـوړ تـه رسـیبده نـو پـه جهادی قالب جوړ ، د یرغلګرو سره کرکـه، په خپلواکۍ مین او جهاد غوندی سپیڅلي فریضـه بـه یـې خپلـه اصلي دنـده ګڼلـه، مولوی محمد ابراهیم سهیل هـم د همـدی څوانانو لـه جملـی څخـه وه چـې د جهاد او شـهادتونو کیسـی بـه یـې هـر وخـت د مجلسونو سرټکی وه پر یرغلګرو تعرض او هغوئ ته کمینونه نیـول بـه یـې د ژونـد تـر ټول مهـم کارونـه بلـل هـم هاغـه وه چـې د علمی تنـدی لـه خړوبولـو نـه پـس د جهـاد مینی او د اشغال نفرت کورنی ژونـد تیرولـو ته پرینښود د نیکه توره یې تر مـلا وتړلـه د عملی جهاد ډګر ته یې راودانګل او په ډیـره کمـه مـوده کـې د خـدائ ورکـړی بیشمیره کمالاتـو لـه املـه د جهـادی آسـمان یـو ځلانده ستوری او د یرغلګرو او د هغـوئ د غلامـانو د سـترګو ازغـی وګرځیـد او پـه لسګونه وار یې د ده لـه منځـه وړلـو لپـاره د ورځې او د شپې وخشې جایې ووهلی خـو د مولوی صیب د کاملی څیرکتیا او میړانی لـه امله حتی د مولوی صیب پـه زخمـی کولـو هم و نتوانیدل او د ځانی او مالی تلفـاتو پـه لیدلو به بیرته په شا شول هر کلـه یـې چې دا تدبیر ناکام شو نو د خپل عادت له مخې یې د مولوی صیب د شهیدولو لپاره داخلی جاسوسـان پـه کـار واچـول مګـر د مولـوی صیب د خدای ورکړی څیرکتیا لـه املـه یـې دا تدبیر هم ناکام شو او مولوی صیب پـه دی بریالی شو چې د ده وژلـو پسـی راغلـي جاسوسانو تـه د مـرګ پـه کاسـه کـې اوبـه ورکړې د جهـادی بریـاو سربیـره عـام کلـی والو سره په عادی ژوند کې د مولوی صیب د ګلورینو اخلاقو دا حال وه چې تر دی دمـه داسـی وړه بیلګـه هـم نشـته چـې مولـوی صیب دی له چا سره ظلم یا نـاغیړی کـړی وی د همدی ګلورینـو اخلاقـو وجـه وه چـې هر وخت به پری د ملګرو او عـام کلـی والـو لوی تعداد راجمع وه یرغلګر او غلامان یـې پـس د ډیـرو کوششـونو پـه دی وتوانیـدل چـې دا علمـی او جهـادی څیـره د ډرون بـه یـوه نـاځوان مردانـه حملـه کـې دروان ۲۰۱۷ کال اپریل پـه ۳۰ نیټـه یکشنبی پـه ورځ مانبام مهال په شـهادت ورسـوی او د خوګیـانو لـه ګلشـنه د مرحـوم اول سـید د کورنۍ څلورم ګل هم ورژوی.

انا لله و انا الیه راجعون

## زویـه نـه ژاړم تـه شـهـیـد یـې!

سپینې ټوټې یې له سرو تړلې وې په خوشحالی له مجلسه پاڅېدل له ټولو ملګرو سره یې وروستې ځل لپاره مخه ښه وکړله موټر ته پورته شول دسپېڅلي زلمیانو په شونډو خنداګانې نڅېدلې سپینې خولې یې په سپین جبین داسې ځلکېدلې ته وا شبنم په ګلاب پروت دی موټر یې پنا کړو له لیرې څخه دوستانو له سترګو نه غورځول ته وا دوی ته الهام شوی وو مور دخپل څوی ښایست ته له بامه ګوته په غاښ وه او ناز او فخر یې کاوۀ چه څوی یې طالب دی ناڅاپه غرمب شو یوه شېبه په سیمه چوپتیا خوره شوه له موټره تور دودونه پورته شول ناظرین قلف او کیلي شول یوه شېبه مو حواس له لاسه ورکړ له پښو مو ساه ووته په موټر لمبې بلېدلې ناڅاپه یوه ملګري په ګونګه ژبه چیغه کړه شهیدان یې کړل !!

په بام ولاړه د طالب زلمي مور له بامه نه پوهیږم چه څنګه راکوزه شوه منډې یې راوهلې او له خولې یې پرته له څویه، څویه بله کړیکه نه وته په خپل شهید څوی ورپریوته او چیغې یې څویه پښې دې نشته یو لاس دې هم پرې دی څوی یې ښې لاس راپورته کړو او ګرانې مورته یې په مخ راکش کړو او بیا یې وویل مورې مه ژاړه بیا یې د شهادت ګوته داسمان لورې ته پورته کړه او ویې ویل اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدرسول الله غړیدلې سترګې د مور په مخ خښې پاتې شوې مور یې ورته په سترګو لاس راکش کړو او په سلګوېې وویل څویه زه نه ژاړم ته شهید یې زه په تا ویاړم.

# آفرين بريتو عسكره! زما ځواب دې راكړ!

نصيب ځدراڼ

د پکتیا ګبر منګل سیمه کې د خپلوانو کره تللی وم، دا یوه غرنۍ سیمه ده، د ښار په څېر د سیل ځانګړې ځایونه لکه پارکونه، لوبغالي او نور پکې نشته. له همدې کبله د دې سیمې میلمه د سیل لپاره د کلي دوکانونو ته بوول کیږي، هلته د کلي ځوانان سره راټول شوي وي مجلسونه کوي او له نویو تازه کیسو نه ځانونه خبروي.

زه هم همدې دوکانونو ته له خپلوانو سره ورغلم، ملګري ډېر او بانډار ګرم و. که ګورم یو ډاټسن موټر راغی طالبان ترې راکوز شول یو څه خوراکي سامان یې په کار و. هغه وخت کې دا سیمه د طالبانو او دامریکایانو دجنګ پر مرکز باندي بدله شوې وه. هره دویمه ورځ به بمبار ویا به چاپه وه.

طالبان له موټر نه راکوز شول مخابره یې چالانه وه، پاس جیټ الوتکې ګرځیدې، دا ځیني کلیوال لږ وارخطا هم و چې هسې نه اوس بمبار وربانديې وکړي چې موږ به هم ورسره خراب کړي خو طالبان د اټکل خلاف خورا مطمین ولاړ و. هغوی سامان واخیسته یو ناڅاپه درز شو، دوکان کې د ناستو ټولو خلګو رنګونه تغیر شول، وارخطا مالومیدل او ټول په پښو جګ ودریدل.

یو طالب مخابره چالانه کړه پر ملګرو یې غږ وکړ، څو ملګرو ځوابونه ورکړل یوه یې ورته و ویل چې داسې ښکاری چې"تور قاري" دوی یې و ویشتل. په تور قاری یې غږ وکړ خو ځواب یې تر لاسه نه کړ.

خدای شته دوکان کې ناست ټول خلک ډېر وارخطا و، ځیني په دې خفه و چې بیا به یې څوک ویشتلي وي څوک به شهیدان او څوک زخمیان وي؟ ځکه چې د هغې سیمه طالبان ټول ځایي خلک و. بعضي بیا ډاریدل چې هسې نه دلته بمبار وشي.

په مخابره کې بیا غږ شو، طالب ته ملګري غږ وکړ چې لمبر ته شه! بیا ورته لګیا شو تور قاري او پنځه نور ملګري یې تللي و، تر څو سیمې ته په چورلکو کې راغلي امریکایان له لیرې نه په هشتاددو وولي، خو بدبختانه جې پې ایس یې کشف شوی او جیټ الوتکو بمبار وربانديې کړی ټول شهیدان شوي اوس څنګه وکړو؟؟

باور وکړئ ښه مې پر زړه دې چې له زموږ سره ولاړ طالب ورته وویل چې سمه ده تاسې ورشئ شهیدان راوړئ زه کلیوال خبروم چې قبرونه تیار کړي.

بیا په مخابره کې لګیا شو ملګرو ته یې وویل چې د تور قاري د شهادت مبارکی ملګرو ته وایم پینځه ملګري (پلانکی، پلانکی او ...) نور هم شهیدان شوي د ورخطایې خبر نه ده الحمدلله اول یې امریکایان ویشتلي بیا دوی شهیدان شوي، قبرونه تیار کړئ او کلیوال خبر کړئ چې جنازې یې وکړو.

موټر ته ور روان شول مخابره یې لاس کې وه خو نه یې رنګ تغیر شوی و نه یې وارخطا خبر وکړه. جیټ طیاري په هم هاغه وخت هم ښه په مستۍ ګرځیدې راګرځیدې.

بیخي حیران شوم چې دا څنګه زړونه دي؟ څنګه عقیده ده؟ موږ ته خو چې کور کې مریض راوشي ورته وارخطا و، د اتیا کالو سپین ږیری مو چې وفات شي نو تر یوه یوه میاشت د غم ډکو کیسو باندي نه سترې کیږو. لږ سختي چې راباندي راشي نو دین او غیرت مو هیر وي او د ځان خلاصولو په لټه کې یو.

دا کیسه هلته رایاده شوه چې کندز کې د ملی اردو عسکر ویډیو مې ولیده ویل یې چې موږ ټانګ لرو، مرمۍ لرو، مهمات لرو؛ خو ایمان نه لرو. ځکه طالب هر وخت موږ ته ماتې راکوي. په زړه کې مې وویل چې آفرین زما د سوالونو ځواب خو دې راکړ.

د طالب مبارزه شپاړسم کال ته داخله شوه، زنداني شي او ځوانې یې زندان کې خزان شي، زخمي شي د علاج د نشتوالي له امله معیوب شي، جنګ په داسې تاکتیک کوي چې اول ځان ته تلفات واړوي، اول له خپل سر نه تیر شي بیا دښمن ته له ځان نه لس چنده زیات تلفات ورسوي. تر لسو ډیرې کورنۍ پیژنم چې د یوې مورکۍ درې درې بچیان شهیدان شوي او پاتې بچیان یې عملاً په جنګ کې دي.

خو د طالب مبارزه ورځ تر بلې ګړندۍ کیږي دا زخمونه، شهادتونه، زندانونه او هیڅ ډول کړاوونه یې په لاره کې خنډ نه شول او مبارزه یې داسې ډګر ته داخله شوه چې یوه طرف ته ۴۹ هیوادونه او داخلي همکاران دي بل طرف ته طالب یواځې دی خو د کرزي خبر چې نیمایي افغانستان یې نیولی دی.

د کندز بریتو عسکره!

زما د پوښتنو ځواب دې راکړ، ما به ویل چې د طالب سره کوم قوت دی چې دومره فولادي عقیده لري؟ نن تا زما ځواب راکړ چې هغه قوت ایمان دی چې ته یې نه لري او طالب یې لری. او ایماني قوت هیڅ کله ماتې نه شي خوړلای، همدا د قرآن قول دی!!

# زه او سخت دریځي!

ابو یاسر افغان

د نني عصر د جګړو په قاموس کې چې د امریکا په مشرۍ د نړیوال کفر لخوا ترتیب او د واتیکان، تل ابیب او وروسته بیا د سپیني ماڼۍ لخوا پرې کره کتنه شوې، امضاء شوې او توشیح شوې دی، د سخت دریځۍ او سخت دریځو باب یې ټول په اسلام راڅرخي. غرب او لاسپوڅي یې په یوه خوله وایي چې سخت دریځي هغه حرکتونو ته وایي چې کوم زموږ د استعماري او استثماري حرکتونو او پالیسیو پرضد پیل کیږي.

زه د خپلې خبرې د ثبوت لپاره همدومره ویل کافي ګڼم، چې نن ورځ ټول کفار او منافقین په یوه صف کې ولاړ دي، خپلو ظلمونو او وحشتونو ته یې پام نه دی، نړۍ یې د عامه تباهۍ د وسلو په جوړولو یې د هلاکت په څنډه درولې، مګر دوی یوازې هغه څه ته تروریزم وایي، چې د دوی د ظلم او تجاوز مخالفت په کې وي، معلومه خبره ده که هغه نظامي حرکت وي لکه د نړیوالو جهادي ډلو فعالیتونه او که هغه دیني یعني د تعلیمي برخې حرکت وي لکه د دیني مدارسو تدریسي فعالیتونه، همدغه ډول سیاسي حرکتونه لکه د اخوان المسلمین حرکت او که خیریه بنسټیز او د بیا رغونې هڅې وي لکه د اسلامي خیریه مؤسساتو مرستې د فقیرانو او محتاجو خلکو سره، دا ټول حرکتونه ځکه سخت دریځي بلل کیږي، چې د امریکایي سانسور او حکم نه سرغړونه کوي.

په لنډو ټکو یې که ووایم نو: د امریکا په مشرۍ د نړیوال کفر په ډیکشنرۍ کې د نن ورځې سخت دریځي عبارت دی د سوچه اسلامي حرکتونو څخه، مطلب که هر څوک په هره بڼه اسلام او مسلمانانو ته خیر رسوي، هغه سخت دریځه دی او باید له مخې لرې شي!!

د پورتني لنډ وضاحت نه وروسته به ووایم چې زه ولې سخت دریځه شوم:

زه ځکه سخت دریځه شوم چې زما په خلاف د نړۍ ټولو کفارو شیطاني اتحاد یه جوړه کړه تر څو ما د دنیا له مخې ورک کړي او دوی ته د خپل شیطانت مخه خلاصه شي، زه ځکه سخت دریځه شوم چې زموږ اسلامي خاورې د کفري لښکرو لخوا اشغال شوې، ځکه چې زموږ د دین او دیني مقدساتو توهین وشو، ځکه چې زموږ مسلمانان د یهودي او صلیبي جبر ښکار شول.

سخت دریځي که نظامي فعالیتونه وي، نو زه ځکه سخت دریځه وسله وال یم چې د غرب کفري لښکرې زموږ ځمکو ته مسلحې داخلې شوې، د جنګونو یوه نه شلیدونکې لړۍ یې په کې پیل کړې او په هره ممکنه وسیله یې د مسلمانانو د وژلو، کمولو، بې لارې کولو او محتاج ساتلو لپاره کوشش نه کړي، سخت دریځي د غربي قاموس په یوه برخه کې عبارت د جهادي حرکتونو څخه دی، نو زه ځکه سخت دریځی شوم چې ما د جهاد سپېڅلې قرآني فریضه عملي کړېده.

امریکا او متحدین یې در ګرده لګیا دي، اسلامي ځمکې اشغالوي، د مسلمانانو په اقتصادي، کلتوري، سیاسي او نظامي اړخونو فشار زیاتوي، اسلامي هېوادونه یې د تباه کوونکو وسلو د ازمایلو په لابراتوار بدل کړي، مسلمانان ښځې او ماشومان د دوی د ښې ویشتلو او ساعت تیرۍ لپاره استعمالیږي، هیڅ یو حقیقي مسلمان، اسلامي مرکز، اسلامي حرکت او اسلامي خاوره د دغې یهودي امریکا د شرارت څخه په امن نه ده، نو که اوس زه د دغو ظلمونو خلاف غبرګون ته کوم سخت دریځه بلل کېږم، پس د دې لپاره چې زه د غرب د شیطانتونو، ظلم او ناروا نه خلاص شم، د اسلامي جهاد سپېڅلې لاره مې غوره کړې کوم چې زما دین یې ما ته حکم کوي، که دغه سخت دریځي وي، نو ویاړم چې یو سخت دریځه اسلام پال یم، نه شیطان پرست، بزدله، غلام، محکوم او کفر پلوي غرب پال او ډیموکرات.

په نړۍ کې د سر لوړي ژوند، آزاد حرکت، خپلواک نظام او منل شوي عظمت درلودل زموږ حق دی، غرب څه کاره دی چې د خپل شیطانت او رذالت لپاره زموږ په چارو او ځمکو کې مداخله کوي، همدا چې زه د غرب غلامي نه منم، اسلامي شرعي نظام غواړم او اسلامي تګلاره باندې تګ غواړم، غربي او شرقي کفار ما نه شي زغملې، نو د دې لپاره چې په زوره مې د کفر غلامۍ ته مجبور، د خپل حق نه محروم او د ابد لپاره محکوم کړي، لومړی را باندې د سخت دریځه، تروریست او باغي نوم ږدي، بیا را پسې لوی پوځونه، درنې وسلې او وژونکي آلې راوړي چې زما د آزادي خوښي فکر سزا ما ته را کړي، همدا اوس چې ټوله اسلامي نړۍ د امریکا او یهودو تر نظامي او فکري استعمار لاندې ده، خپل هر ظلم او ناروا ته جواز برابروي، مګر دا چې ما پیژندلي، له حیثیت او اهدافو څخه یې خبریم، غلامي یې نه منم او پرضد یې د جهاد مقدسه تګلاره غوره کوم، زه سخت دریځی او تروریست بلل کېږم؛ پس که د ظلم او اشغال، د کفر او شیطانت، د کفري دسیسو او سیاستونو خلاف حرکت ته سخت دریځي ویل کیږي، زه سخت دریځه یم، سخت دریځي زما لپاره ویاړ او فخر دی، د ژوند تر پایه پورې به همدغه فکر او تګلاره پرینږدم.

ان شاءالله

# غفور پیروز

## او په هیواد کې د معاصر اعتزال پدیده

زلمی مدنی

اعتزالي تفکر اوږد تاريخ لري. لومړني معتزله هغه عقلگرايان ول چې هڅه يې کوله اسماني دين دد ځمکني بشر- د عقل په مقياس برابر کړي.دوی د ديني عقائدو او شرائعو هغې برخې يا رد کړي او يا يې هم له ځانه ورته توجيهات را وايستل چې د انساني عقل له غوښتنو سره يې توافق نه راتلو.

معتزله د الله تعالی له ديدار څخه منکر شول،قران کريم يې مخلوق يا د رسول الله الفاظ وبلل.د تقدير مسئله چې د انساني عقل د حيرت تر ټولو مهم مورد دی معتزله له تقدير څخه منکر شول او ويې ويل چې انسان مختار دی.ځکه دا د الهي عدل د تقاضا خلاف باور دی چې الله تعالی دې يو ځل د انسان کردار مقدر کړي او بيا دې په هغه عمل سزا ورکوي.

دوی له تقدير په انکار سره ځانونه الله تعالی ته د عدل ثابتوونکي بلل او خپله فرقه يې (اهل التوحيد والعدل) بلله. عقلگرا معتزله د قيامت او معاد په سم تحليل کې هم پاته راغلل او ويې ويل چې د انسان بيا راژوندي کيدل عقلا محال دي نو دوی باور درلود چې قيامت، ثواب او عذاب روحاني احساسات دي کوم خارجي وجود نلري.

معتزله فرقه چې ځانونه يې عقل پرست بلل او دين يې د عقل په قالب کې ځاياوو، دې ته يې فکر نه درلود چې دين د خبير او قديم رب متعال جل جلاله فرمان او قانون دی چې د حادث انسان عقل يې نه د ټولو اسرارو د تحليل ځواک لري او نه يې هم له خپلو غوښتنو سره منطبق کولای شي.همدا لامل و چې معتزله فرقه د يوې شاذې او منحرفې فرقې په توگه د دين د تحريف په جرم گمراه وشميرل شول او ټول امت ترې برائت اعلان کړ.

هغوی د اهل السنة و الجماعت له ډلې خارج وبلل شول او دوخت عباسي خليفه محي السنة المتوکل علی الله يې په مذهب او مذهبي تبليغاتو بنديز ولگاوو چې ورسره دغه لومړني عقلگرايان هم کرار کرار له صحنې محو او د تاريخ برخه وگرځيدل.

هغه پديده چې اوس ورته معاصر اعتزال يا نوي عقلگرايان وايي په اسلامي نړۍ د غربي استعمار له دورې څخه را شروع کيږي. په وروستيو پيړيو کې د غربي او کفري نړۍ پرمختگ او د مسلمانانو وروسته پاتي کيدلو مسلمانان مفکرين په ژور وسواس مبتلا کړل چې په پايله کې يې د مسلمانانو لخوا په درې ډوله عکس العمل وښودل شو. ځينو د غربي فيلسوفانو دا خبره ومنله چې د مسلمانانو د عقب ماندگۍ اصلي سبب اسلام دی نو که مسلمانان پرمختگ غواړي بايد اسلام پريږدي. دې ډلې په اسلام باور له لاسه ورکړ او د پرمختگ ضامن يې غربي کفر وباله. دويمې ډلې وويل چې اصلا مسلمانانو واقعي او د خير القرون اسلام ته شا اړولې نو ځکه وروسته پاتې دي دوی له غرب سره د



سیالی لپاره د اصلي اسلامي تعلیماتو لکه خلافت، امت،جهاد او شریعت د را ژوندي کولو خوځښت پیل کړ چې لا هم دا مفکوره په درسته اسلامي نړۍ کې جریان لري. دریمې ډلې فکر وکړ چې د اسلام هغه تعبیر چې په تیره زریزه کې شوی د اوس عصر له غوښتنو سره توافق نلري، په اسلام کې د اوس عصر مروجه عقل ګرایي له پامه غورځول شوې نو باید اسلام له سره د عقل په رڼا کې داسې تفسیر شي چې د اوسنی وخت له غالب تفکر سره اړخ ولګوي. دې ډلې په حقیقت کې هماغه د معتزله وو شعار را ژوندی کړ چې عقل تر ټولو ستر اصل دی او باید د دین په شمول هر څه یوازې د عقل په تله وتلل شي معتزله وو به ویل (المعارفُ کلّها معقولة بالعقلِ، واجبة بنظر العقل)

معاصر معتزله یا عقل ګرایان چې کله خو ځانونه تجدد ګرایان هم بولي ځینو یې د خپل فلسفي خاصیتت له امله د دین نوي او عقلي تفسیر ته کار ولی او ځینې یې بیا د غربي نړیوال لادینیت د هغې سترې پروژې برخه دي چې غواړي په نویو او بیلابیلو دیني تفسیرونو او تاویلاتو سره مسلمانان په خپل دین کې شکمن کړي او د تفرق فتنې را ویښې کړي.

معاصر اعتزال هم د هرې نوې مفکورې په شان له معمولي ادعاوو څخه پیل کړی او دوخت په تیریدو سرهه یې افکار او عقائد د پخوا په نسبت سخت او افراطي شوي دي او په دین کې لا نورو تاویلاتو ته خبره رسیدلې ده. د بیلګې په توګه په مصر کې د دیني عقل ګرایي مفکوره د محمد عبده له وخته را پیل شوې وه، خو وروسته یې دومره وده وکړه چې د نصر حامد ابو زید او حسن حنفي لخوا انساني عقل کټ مټ د معتزله و په شان تر ټولو ستر اصل وبلل شو. حسن حنفي وایي: زموږ د وخت شرایط د عقل اصالت منل او له عقلانیت څخه دفاع ایجابوي، ځکه چې زموږ د ماډرن فکر تاریخ هم په همدې دلالت کوي له همدې امله د معتزله وو مسلک چې عقل یې د نقل لپاره اساس باله دنن ورځې مهم ضرورت بلل کیږي.)

زموږ هیوادچې له وخته د فکر او فلسفې د تولید له نګاه له فقر سره مخ دی د معاصر اعتزال مفکوره هم پهه کې کومه سابقه نلري خو زموږ په چم ګاونډ کې معاصر اعتزالي افکار له ډیره وخته د خپریدو په حال کې دي. په هند کې سرسید احمد خان د دغو افکارو یو مخکښ دی چې د قرآن دمخلوقیت په بار کې کټ مټ د پخوانیو معتزله وو په شان عقیده لري دغه راز د تعدد زوجات او حتی د پیري د وجود په اړه ټول آیاتونه یې د عقل خلاف بللي او خپلسري تاویلات یې په کې کړي.

په پاکستان او هند کې د سرسید احمد خان د معتزلي افکارو یو مشهور پالونکی جاویداحمد غامدي دی. نوموړی د صحیح احادیثو په رد او آیتونو په تحریف او تأویل شهرت لري. جاوید احمد غامدي هم هڅه کوي چې اسلامي احکام او شرایع ټول په خپل عقل برابر کړي نو ځکه هر هغه حدیث چې دده د عقل د غوښتنو خلاف خبره په کې شوي وي په بیلابیلو دلائلو یې مجروح بولي او رد کوي یې.

# په ریاستي نظام کې د ترکې راتلونکی

شهید زوی

د۲۰۱۷م کال د اپریل ۱٦ مه نېټه دترکې دتاریخ یوه مهمه ورځ وګرځېده پدې ورځ دترکې ۸۵ سلنه وګړي په اساسي قانون کې دیولړ مهمو بدلونونوراوستلوپه اړه دمثبتې یامنفي رایې دکارولو په موخه را ووتل او اکثریت یې په ریاستي نظام دپارلماني نظام دبدلولو پرېکړه وکړه.

پدې ترسره شوې ټول پوښتنې کې دترکې ولس یوځل بیا نړۍ ته څرګنده کړه چې دترکې برحال ولسمشر- یې اصل رهبر او قائد دی.

۹۳ کاله وړاندې چې په ترکې کې عثماني خلافت ړنګ اوکمال اتاترک دسیکولر ترکې بنسټ کېښود نوپدې ۹۳ کلونوکې په ترکې کې ٦۵ حکومتونه جوړشویدي چې دعدنان مندریس داولې دورې ؛ دترګت اوزال اودطیب اردګان دحکومتونو پرته هرحکومت دفوځ له لورې ړنګ شویدی او دخپلې قانوني مودې پوره کولوته ندی پرېښودل شوی ؛ داکلونه که په حکومتونو وویشل شي نو اوسطاً دهرحکومت عمر ۱۷ میاشتې کېږي اوچې دیادو ۳ واړو لومړي وزیرانو حکومتونه ترې نفي شي نوبیا دیوحکومت موده دیوکال نه هم کمه راځي ؛ همدا راز

په اساسي قانون کې دترمیم اومثبتوبدلونونو راوستلو لپاره هم ډېرومخکنوحاکمانو هڅې کړی وې او په ۱۹٦۱م او ۱۹۸۲م کې ددې هدف لپاره ټولپوښتنې هم تر سره شوی وې خوهیڅوک هم پدې اړه کامیابۍ ته نه و پرېښودل شوی نو په داسې ترکې کې چې دترکې ولس دتېرو ۱۴ کلونو راهیسې پرولسمشر طیب اردګان دخپل اعتماد اظهار کړی او پدې مودې کې یې په هرو ترسره شویو انتخاباتو کې هغه ته رایې ورکړیدي نودمسلسلو بریالیتوبونو اودحکومتونو دبقاترڅنګ په اساسي قانون کې دترمیم لپاره په ټول پوښتنې کې کامیابي دطیب اردګان لپاره لویه کامیابي اولاسته راوړنه ده او دا پړخای ده چې دې ترسره شوې ټولپوښتنې دده په بریالیتوبونو دتصدیق یو بل مهر هم ثبت کړ.

دا ټولپوښتنه له دې امله ډېره مهمه وه چې پکې په راتلونکي کې دکوم ګوند دحکومت راتلو یا نه راتلو خبره نه وه بلکې خبره پکې دترکې دحکومتي نظام دبدلون دبنسټیزې پرېکړې وه.

طیب اردګان غوښتل چې دترکې راتلونکی نظام دې پارلماني نه بلکې ریاستي وي؛پدې ټولپوښتنه کې یواځې همدا پوښتنه شوي وه چې آیا ته ریاستي نظام غواړې ؟ په هو!یانه ددې جواب ورکول وو.

په ترکې دارایو ورکولو داهل تنانو شمېره کابو ۵۵ ملیونو ته رسېږي چې په دوئ کې ۸۵ سلنې دخپلې رایې په کارولو په اوسنۍ ټولپوښتنې کې برخه واخسته او ټولپوښتنه کې ۵۱.۴ خلکو دتائید او ۴۸.٦ درد رایه کارولی وه .

ددې نوي قانون دمنظورېدا نه پس به طیب اردګان قانوناًحق ولري چې په راتلونکې کې دوه ځل بیا هم ځان په ولسمشریزو انتخاباتو کې کاندید کړي؛یانې هغه به دقانون له مخې ددې اهل وي چې تر۲۰۲۹ م پورې دترکې قیادت وکړي.

سره له دې چې دګڼو اروپایانو له لورې په طیب اردګان تنقیدونه شویدي او ویلې یې دي چې له دې لارې به د طیب اردګان په واک اختیار کې ډېرزیاتوالی راشي او یو دیکتاتور ولسمشر به ترې جوړشي خودامریکا ولسمشر ډونالډټرمپ هغه ته پدې بریالیتوب مبارکي ویلې ده ؛ طیب اردګان ته دامریکا دولسمشر مبارکي ویل په ښکاره له ځانه سره داپیغام لري چې دترکې ریاستي نظام دامریکا اوسنۍ ادارې لپاره دقبول وړ دی او دا به د دواړو هېوادونو ترمنځ داختلاف سبب نه جوړېږي.

دیادولو وړ ده چې ترکیه په ناټو کې دغړیتوب لرلوله امله نه یواځې دا چې دامریکا او اروپا مهم اتحادي دی بلکې دسوړ جنګ دوخت نه تر دا وروستو وختونو پورې دا دروسې پرضد داروپا کلا ګڼل کېدله خو اوس د ترکې او اروپا روابط تر ډېره حده د اعتماد او اعتبار نه خالي ښکاري .

دلته دا پوښتنه مهمه ده چې په ترکې کې ددولتي نظام ددې بدلون څه اړتیا وه؟

او داچې ریاستي نظام به ترکې یا طیب اردګان ته څه ګټه ورسوي ؟

ددې پوښتني دځوابولو لپاره اړینه ده چې دترکې حالاتو ته لږه ځغلنده کتنه وشي.

په ۲۰۰۳ م کې چې طیب اردګان دترکې واک ترلاسه کړ هغه مهال ترکیه په هرلحاظ د ډېر تنزل ښکار وه ؛ ترکیه داسلامي نړۍ نه لرې وه اولویدیځ ځانته نه رانبږدې کوله په هېواد کې بد امني او په دولتي چوکاټ کې فساد اوج ته رسېدلی و ؛ دترکې اقتصادي حالت ډېر خراب و؛دترکې اقتصاد دکورنو او بهرنو قرضونو ترسخت فشار لاندې و؛ په هېواد کې سخته بې کاري وه او پولي انفلاسیون اوج ته رسېدلی و.

طیب اردګان دواک په خپلې ړومبۍ دوره کې خپله ټوله توجو دفساد ختمولو ؛ امن راوستلو اواقتصادي اصلاحاتو لور ته راواړوله ؛ داقتصادي تېز پرمختګ پرلور یې دترکې دروانولو لپاره ډېرې هڅې وکړې چې په نتیجه کې یې د آیي.ایم.ایف په شمول ټول قرضونه له وخت نه وړاندې ادا شول،بې کاري له منځه ولاړه پولي انفلاسیون کنټرول شو او ترکیه دبهرنو پانګوالو لپاره دپانګونې په یو بهتر مرکز بدله شوه ؛ او هغه وخت هم راغلو چې ترکیه دټولې اسلامي نړۍ په ستر اقتصاد بدله شوه؛داروپا دګڼو هېوادونو په پرتله یې اقتصادښه شو نو ځکه په نړۍ کې چې داقتصادي بحران پرمهال داروپا زیات هېوادونه دسترو اقتصادي ستونزو ښکار وو ترکیه دکوم لوی اقتصادي مشکل سره نه وه مخامخ شوې.

اردګان چې دښوونې اوروزنې ، تجارت ، صنعت ، زراعت اوبیا رغاونې په اړه کوم مثبت انقلابي اقدامات وکړل لړلیک یې ډېر اوږد دی اوموږ ترې وړاندې ځو ځلې یادونه کړیده نویادول یې اړین ندي .

ددې ترڅنګ اردګان ملکې حکومت ځواکمن کړ او په سیاست کې یې دهغه فوځ دمداخلې ټولې دروازې وتړلې کوم چې دنوې ترکې دبنسټ ایښودونکي کمال اتاترک دوخت نه دقانون دمحافظ حیثیت لرلو او څوځلې یې په ترکې کې جمهوري حکومتونه پړنګ کړي وو.

دمحترمو لوستوالو په علم کې به وي چې یو وخت شام دعثماني خلافت یو ولایت و؛دمشهور برتانوي جنګي مشر لارنس آف عربیبه دلښکر او ترکانو ترمنځ دمشق کې دسختوجنګونو درامنځته کېدو نه پس ترکانو په دمشق کې ماتې وخوړه او په همدې سره په عربي نړۍ کې دعثماني خلافت ډیوه مړه شوه نو ځکه دنوې ترکې درامنځته کېدو نه دطیب اردګان تر واکمن کېدو پورې دترکانو او عربانو اړیکي سختې ترینګلې وې؛ په دمشق کې دلګېدلو زخمونو هېرولو ته ترکیه نه وه چمتو نو ترکیه ځکه دعربانو په مقابل کې داسرائیلو سره ددیپلوماتیکو اړیکو دقائمولو ترحده ولاړه.

خوواک ته درسېدلو سره سم اردګان داسې قدمونه پورته کړل چې دترکانو او عربانو ترمنځ نفرتونه ډېر په تېزۍ مخ په کمېدو شول او هغه وخت ژر راغلو چې ترکیه دعربو سره اوږه په اوږه ودرېده او دفلسطین په شمول کابو په ټولو مسائلو کې سره یوه خوله شول .

خو له بده مرغه چې ۲۰۱۱ م کې په شام کې کورنی جنګ پیل شو او په ترکې دابتلاء یوه نوې دروازه خلاصه شوه.

۳ ملیونه شامي مهاجرینو په ترکې کې پناه واخسته؛ددوۍ دټولو اړتیاو پوره کول ترکې پرغاړه اخستل چې له امله یې دترکې اقتصادتریو حده دفشار لاندې راغلی دی خو دا دترکې لپاره داندېښنې وړه خبره نده داندېښنې وړ خبره د هغه کردانو بیا راپورته کېدل دي چې په ترکې،شام او عراق کې مېشت دي او دوۍ ټول دمستقل هېواد غوښتونکي دي .

دمسلسلو هڅو نه پس طیب اردګان دترکې کردان مذاکراتو ته تیار او په حکومت کې یې شامل کړي وو خو دشام دستونزې دراپورته کېدو نه پس کردانو خپله زړه غوښتنه بیا راپورته کړې او دترکې ددولت پرضد یې مسلحې مبارزې ته لاس اچولی دی ؛ترکیه دکردانو دبغاوت په ځپلو کې دډېرو مشکلاتو سره مخامخ ده.

دترکې لپاره دبل ستر امتحان اړخ دادی چې دشام کورني جنګ کې منځنی ختیځ دتقسیم ښکار شوی ؛ ایران بلاقیدوشرط دبشارالاسد حمایت پیل کړ او دبشار دفوځ سره اوږه په اوږه دجنګېدلو لپاره یې خپل فوځیان اوملېشې شام ته بوتلي دي او دبشارالاسد په مقابل کې دراپورته شوو



مثاله اداره ده خو همدا بې مثاله اداره دګنو داسې چلنجونو سره مخامخ شوه چې ترې کامیاب راوتل اسان کار نه و.

دطیب اردګان داداري پروړاندې دهمدې مشکلاتو دشتون نه په استفادې دتېر ۲۰۱٦ م کال دجولائی په میاشت کې دده پرضدفوځي کودتا وشوه چې له نېکه مرغه ناکامه شوه ؛ دطیب اردګان په غوښتنې دترکې ولس راووتلو دټانکونو مخې ته پرسړکونو پرېوتل او دا کودتا یې ناکامه کړه؛کودتا فوځ کړې وه خو دطیب اردګان په وینا یې تحریک دفتح الله ګولن په نوم دهغه تن له لورې وکوم چې دامریکا په پنسلوانیا ایالت کې دجعلي او خود ساخته جلاوطنی یا تبعید شپې تېروي ؛ نوځکه دفوځیانو ترځنګ دعدلې،تعلیم او تربیې او نورو ځانګو سره تړاو لرونکي ګڼ شمېر خلک ونیول شول او سزاګانې ورکړل شوې.

ددې کودتا دناکامۍ نه پس طیب اردګان وویل چې دټولو ستونزو او مشکلاتو نه خبر دی او پدې پوه دی چې دداسې مشکلاتو نه دوتلو لپاره په ترکې کې دیوې ځواکمنې اداري دشتون اړتیا ده او دځواکمنې اداري شتون دځواکمن ولسمشر سره تړلی دی.

اردګان ویل چې په وخت او ځای پرېکړه او دبحراني حالاتو نه دهېواد راویستل یواځې یو ځواکمن ولسمشر کولای شي؛او دقوي ولسمشر په شتون کې به دلا قوي او پرمختللی ترکې په رامنځته کېدو کې اسانتیا رامنځته شي.

دپارلمان دغړو اوولسمشر کاري دوره چې مخکې ۴ کلونه وه اوس به دریاستي نظام له مخې دپارلمان دغړو اوولسمشر کاري دوره ۵ کلونه وي او یو تن به یواځې ۲ ځلې دولسمشر. کېدو حقدار وي؛دلومړي وزیر چوکۍ به له منځه ځي ؛ لومړی وزیر به لری شی اوپرځای به یې یو یا دوه مرستیالان وټاکل شي ؛ دوزیرانو ،والیانو او او نورو لوړ پوړو چارواکو دعزل او نصب ټول واک به دولسمشر سره وي،بېړنې حالت به دولسمشر. له لورې اعلانېږي او ولسمشر. به دسترې محکمې اولویې غړي پرکړنو دڅار بشپړه حق لري .

دپارلمان دغړو شمېر د۵۵۰ نه ٦۰۰ ته لوړ کړای شو او دا ددې لپاره چې دانتخاب حلقه یې کوچنۍ اود ولس دستونزو په حل کې ورته اساني وي .

په پارلمان کې به اوس دهر ډول سیاسي سودا مخه ونیول شي اودپارلمان دغړوټوله توجوبه اوس د ولس خدمت ته وي ؛ پارلمان به اوس د ولسمشر ، دهغه دنائبانواو وزیرانو داحتساب قانوني حق ولري او داحتساب داعلان نه پس به ولسمشر. دپارلمان ړنګولو او دنویو انتخاباتو دترسره کولو داعلان حق نه لري . که دڅېر مجبوریت په حالت کې ولسمشر. پارلمان ړنګوي نو ورسره به یوځای

ډلو ترشا عربان ودرېدل چې دا دترکې لپاره بل ډېر لوی امتحان و ځکه چې ایران که څه هم یو هېواد دی او بل لور ته نېړدې ټوله عربي نړۍ وه خو دا چې ایران دسیمې خورا مهم هېواد و نو له پامه غورځول یې ګرانه پرېکړه وه خوترکې جرأت وکړ ایران یې له پامه وغورځولو او دعربانو سره په څنګ کې ودرېده.

خو څو میاشتې دمخه دطیب اردګان داداري پرضد په ترسره شوې ناکامې کودتا کې چې دامریکا او ځنې نورو لویدیځو هېوادونو لاس لرل ثابت شول او ترڅنګ یې دروسې اخلاص هم رامخې ته شو چې له امله یې ترکیه او روسیه یوبل ته ډېر نېږدې شول چې کار ترکیه دیو نوي مشکل سره مخامخ کړه ځکه چې روسیه هم دبشارالاسد دبقا لپاره دمخالفینو پرضد دهوایي ځواک نه کار اخلي او سخت درانده بمونه پرې راغورځوي.

خولنډه دا چې که څه هم دطیب اردګان اداره یوه کامیابه او په ترکې کې بې

دانتخاباتو اعلان هم کوي یانې دپارلمان دړنګېدوسره به دولسمشر تلل هم حتمي وي او ولسمشر- اوپارلمان غـړي بـه پـه یوځـای دعـامو انتخابـاتو لـه لارې ټاکـل کېږي .

ددې نوي ترمیم په ترڅ کې فوځي محاکم هم له منځه ځي اویواځې دجنګي حالت درامنځته کېدو پر مهال بـه ددې محاکمو رامنځته کېدل قانوني ګڼل کېږي .

پـه اساسي قـانون کـې د اوسـنو بدلونونو په اړه یوه مهمه خبره داده چې دا بدلون پـه ۱۸ مـادوکې راغلی دی خوددې ۱۸ مادونــه بــه ۱٦ مــادې دراتلونکــو انتخاباتونـه پس نافذ العمل وي یـواځې دوه مادې به یې اوس عملي کېږي ؛ یوه داچې کـه ولسمشر- وغـواړي نـو هغـه بـه دکوم سیاسي ګوند غړی جوړېدای شي یـانې دامنافقـت لــه منځــه ولاړ چــې یوولسمشر- کـه څـه هـم دیـو ګونـد سره همېشـنی تـړاو لـري هغـه بـه دولسمشر- کېدونه پس دا اعلان کوي چې زما دکوم ګوند سره تړاو نشته ؛ نو ددې بدلون نـه پس به طیب اردګان نه یواځې دخپل ګوند دغړیتـوب لرلـو اعـلان کـولی شي بلکـې قانوناً به یې مشرهم جوړېدای شي .

دوهمه هغه ماده چې اوس به پـرې عمل کېږي تړاو یې دقاضیانو دتقرر سره دی ؛ اوس هم دقاضیانوتعین دولسمشر- دمنظورېدا نه پس کېږي خوددې نـه پـس بـه پـه ۱۰ مشرـانو قاضـیانوکې د ۴ تقـر ولسمشر په خپله خوښه کوي .

ترکیه په آسیا او اروپـا کـې واقـع ده ددې یـو مهـم ښـار اسـتنبول مسـلمانانو اوعیسـویانو دواړو تـه پـه تـاریخي لحـاظ ډېـر اهمیـت لري؛مسلمانان داسـتنبول فتحـه داسـلام او مسلمانانو کامیابي بولي اوعیسویان داستنبول سـقوط دخپـل تـاریخ یـو تـور بـاب بـولي ځکـه چـې پـه نتیجه کې یې بازنطیني واکمني له منځـه ولاړه او دعـثماني خلافت دعـروج دور پیـل شـو؛دعروج پـه همدې زمانې کـې نیمـه اروپـا دعـثماني خلافت تـرواک لانـدې راغلـی وه او دروم بحیـره چـې داروپـا دملاتیر ګڼل کېږي پدې زمانې کې پرې یواځې دمسلمانانو قبضه وه.

داروپا مشران او پوهان ترننه خپله دا ماضي نه هېروي او خپلو ولسونو تـه یـې دبیـا بیـا رایـادولو هڅې کوي؛دعثماني خلافت پرضد دروسې،فرانسې او برتان ې اتحادونه دهمدې تعصب پـه نتیجـه کې رامنځته شوي وو.

سره له دې چې دلویـدیځ پوهـان دحـق پرسـتۍ لـوبې دعـوې کـوي خـو نـن چـې ددوئ قـوي اوپرمختللې ترکې ته ګورې نو عثماني خلافت ورته رامخې ته کېږي او دترکې ولسمشر ورتـه دعثمانـې خلافت دوخت خلیفه ښکاري.

لویدیځ ته دفرانسې او امریکا پـه ریاسـتي نظـام کـې جمهوریت او دیمـوکراسي ښـکاري خـو دترکې ریاستي نظام بیا خالصه دیکتاتوري بولي او دټولې نـړۍ دجمهوریـت او دیموکراسـۍ لپـاره یـې خطر ګڼي.

لویدیځ ته په شام کې هغه بشارالاسد دزعم وړ دی دکوم لاسونه چې د ۵سوه زره نـه دزیـاتو شامیانو په وینو سره دي او کوم چې د۱۵ میلیونو نه زیات مظلوم شامي مسلمانان دخپـل هېـواد نـه کډې کولو ته اړ کړیدي خو لویدیځ ته په ترکې کې هغه طیب اردګان دمنلو وړ نـدی چـې پـه مسلسـل ډول ٦ کرته خپل ولس دمشرۍ لپاره انتخاب کړ.

دشام دستونزې په اړه چې ټولې اروپا او امریکا کومه مکاري او چالاکي ښکاره کـړه هغـه دشرم او ظلم نه ډکه ده؛دلویدیځ او امریکا دشومو پلانونو په نتیجه کـې نـه یـواځې شـام بلکـې ټـولې عـربي نړۍ کې کورني جنګونو او فرقه یزې شخړې رامنځته شوې چې ټوله سیمه یې سخته بدامنـه کـړه او ددې بل شوي اور لمبې تر ترکې هم وروړسېدلې .

سره له دې چې ترکیه په ناټو کې غړیتوب لري خو چې په شام کـې ترکـې مرسـته وغوښـته نـو امریکا او اروپا ته دجنګ نه دخپلې لمنې راټولولو پالیسي رایاده شـوه خـو همـدې امریکـا او لویـدیځ پـه عراق کې جنګ لاهم روان ساتلی دی.

دطیب اردګان د اوسنۍ ترکې سره لویدیځ خپلـه دښـمني دومـره ډاګیـزه کـړیـده چـې چـې اوس پدې دښمنۍ کې مسلم بین المللي اصول هم ترپښولاندې کوي اوځه پروایې نه لري .

لویدیځ ددترکې ددولت غړي پرې نه ښودل چـې پـه اروپـاکې د ۴ سـوه زرو مېشـتو ترکـانو سره ددې ټولپوښتنې په اړه خبرې وکړي ؛ تردې چې دهالینډ دولت دترکې دباندنیوچارو دوزیرې طیارې تـه پدې هېواد کې دښکته کېدو اجازه ورنکړه اوچې هغه دځمکې له لارې دې هېواد ته پـه ننوتلـو وتوانېـده نودخپلې قونصلګرۍ نه د ۵ سوه متروپه واټن کې هغه ودرول شوه اوبېرتـه ددې هېـواد نـه راوویسـتل شوه .

ددې بریالیتوب نه پس خوارووپایانو ډېره لویه غوغا جوړه کړه اوداالمان مشرې انګېلا مرکل خودا هـم وویـل چې موږ بـه ترکې ته په اروپا کې رکنیت ورنکړوخوپدې اړه به ورسره مذاکرات جاري وساتو .

دادبې ګټې مصروف ساتلواودوکې ورکولوهماغـه پالیسيـ ده کومـه چـې دفلسطیني مسلمانانو په اړه اسرائیلو خپله کړیده ؛ اسرائیل وایې موږ دآزاد فلسطیني دولت وجود نـه شـو منلی خـو پـدې اړه دفلسطینیانوسره مذاکرات جاري ساتو .

دخپل ولس دتائید اوپه هېوادکې د سیاسي نظام د قـوت مونـدنې نـه پـس طیب اردګان هـم دلویـدیځ پـه مقابـل کې روښانه موقف خپل اوډېر معقول عکس العمل يې ښکاره کړ ؛ طیب اردګان وویل : دیـوې بلـې ټولپوښـتنې لـه لارې دولـس درایې معلومولونه پس به موږ پـه اروپـاکې دشاملېدلو په اړه داروپاسره مـذاکرات دتـل لپاره بند کړو .

دطیب اردګـان دې اخطـار اروپایـان ډېر سخت ورخطا کړيـدي اوډېـرو پوهـانو خپل سیاسي مشران دترکې په اړه دخپلـې رواني پالیسی په اړه ملامت کړیدي .

دفرانسـې دنړیوالوچـارو دروابطـو انسـتیټیوټ مرسـتیال ((دیدیـه پیلیـون)) ویلي دي: اروپایې اتحاد یوسیاسي اتحاد دی کوم مسیحي اتحاد ندی نو د اروپـایې اتحاد دپارلمان نـه دداسـې خبـرو راپورتـه کېدل چې ((موږ باید ترکې تـه پـه اروپـایې اتحـاد کـې رکنیـت ورنکـړو یـا ورسره مـذاکرات منقطـع کـړو)) داروپـا لپـاره تبـاه کونکی شی ګرځېدای شي ؛ دا خلـک بایـد پـدې پـوه شي چـې اوس ترکیـه نـه بلکـې

اروپا دیومریض شخص حیثیت لري نودخواکمنې ترکې سره دروابطـو پـرې کـول بـه داروپـا ډېـر سـتر سیاسي حماقت وي .

طیب اردګان دا هـم ویـلي دي چـې دلـوزان پرتـړون هـم دبیـا کتنـې اړتیـا ده ؛ دده داوینـا ډېـره داهمیت وړ ده چې ټول لویدیځ يې لړزولی دی .

دیادولو وړ ده چې د۱۹۳۲م کـال دجولای پـه ۲۴ مـې نېټـې دسویس پـه لـوزان نـومې ښـارکې دتاریخ یوبدترین تړون رامنځته شوچې له مخې يې دعثماني خلافت ډېره ستره ترکه داغیـارو تـرمنځ وویشل شوه .

دتړون یواړخ ترکیه اوبل اړخ يې برتانیه ، فرانسه ، ایټالیا ، جاپان اویونان وو ؛ داتړون چې پـه ۱۴۳ مادو مشتمل وپکـې عملاًدعـثماني خلافت لـه منځـه تلـل اعـلان اوترکیـه پـه هغـو سرحـداتوکې محدوده کړای شوه کوم يې چې اوس دي ؛ په مهمو سمندري سیمواولارو يې واک ختم کـړای شـو؛ باسفورس او مرمره نومې خورا مهمې سمندري لارې يې بلاعوضه خلاصې پرېښودلای شوې ؛ داهـم ویل کېږي چې پدې تړون کې داهم وچې ترکیه بـه تـر راتلونکو ۱۰۰ کلونوپـورې پـه خپـل هېـوادکې دتېلو دلټې او استخراج لپاره هیڅ قسم اقدام نه کوي .

دلویـدیځ دمنافقت نـه ډکـې همـدې پالیسـی تـه پـه پـام سره طیـب اردګـان دضـعیفو ایـتلافي حکومتونودمخنیوي ؛ دامنیتي ستونزودحل اودبهرنیانو دلاسوهنې دپـای تـه رسـېدو او دخپـل هېـواد د پرمختګ لپاره دنظام بدلولو ته اړ شو اروپایان ددې حقیقت نه خبر دي خو اعتراف کولو ته تیارېږي.

داردګان مخالفینو تور لګولی چې لـه دې لارې طیـب اردګـا ن ځـان د ترکـې دیکتـاتور جوړول غواړي خو طیب اردګان دا تورونه رد کړیدي او ویلـی یـې دي چـې دیکتـاتور دزور لـه لارې رازې نـه د ولس درایو او دازادو انتخاباتوله لارې ؛ اردګان ویلي څه یو فاني انسان یم چې راتـه دخپـل سـباپه اړه علم نشته ، تل به پدې نړۍ کې نـه یـم او نـه بـه تـل دترکـې حـاکم یـم ؛ زمـوږ هـدف پـه هېـواد کـې همېشني اصلاحات دي ، نه همېشنی واکمنې .

که فکر وشي نواعتراض کونکي ګویا سر له اوس نه پـه راتلونکی کـې دخپلـې مـاتې اعـتراف کوي او دا مني چې د راتلونکي ۲۰۱۹ م کال انتخابات به طیب اردګان ګټي او ۵ کلونه به ولسمشـروي ؛ بیابه په ۲۰۲۴م کال کې ترسره کېدونکو انتخاباتو کې هم همدا ګټونکی وي اوپدې طریقې بـه هغـه تر ۲۰۲۹م پورې په واک کې پاتې شي .

په ترکې کې دننه اوپه عـربي رسـنیو کـې ددې ټولپوښـتنې دبریـالیتوب نـه پـس دا مقولـه ډېـره مشهوره شوی چې اتاترک ۷۹ کاله وړاندې مړ شوی خو ایله اوس دفن کړای شو .

دنړۍ مسلمانان دترکې په څېر دمهم اسلامي هېواد پـه ټولو مثبتو پرمختګونـو خـوښ دي خـو دعثماني خلافت دعوه کونکې ترکې کې دسیکولرزم دمفکورې په تمامه معنی دفنېدل او پـه صـحیح معنوکې مسلمانه ترکیه غواړي ؛ دطیب اردګان نه همدې لورته دقدم پورتـه کولوتمـه لـري او همـدا يـې اصل کامیابي بولي .

***

# مـونږ او تـکلف



قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْـمُتَكَلِّفِينَ

زموږ په ټولنه کې ځینې قراني اخلاق عملي دي اوځینې داسې قراني اخلاق چې هغه یاخو کم تبلیغ شوي دي او یاشاید نه وي تبلیغ شوې، څرنګه چې هغه قراني اخلاق زموږ له تقلیدي ژوند دود سره برابر نه وي نو په هغو عمل په نشت شمار ده، نن زه یوه خطرناکه موضوع را اخلم او هغه زموږ په ټولنه کې په یوه قراني اونبوي خلق اوخوی عمل نه کول دي، خطرناک مې ځکه وویلې چې په دې ستونزه او بدعملي په ټولیزه توګه له عوامو علماء ډیر اخته دي، او په علماو نیوکه اسانه نده، خوماته دقران په رڼا کې داکار ناسم او غیر شرعي ښکاره شوی ده، نو په ناسم او غلط کار چوپ پاته کیدل شرعا جرم او لویه ګناه ده، موږ که دتبلیغ او دعوت په ډګر کې په عامو خلکو تیز ورتلی شو او دحق په روښانه کولوکې دچا له ملامتي نه ویریږو نو باید دحق لارویانو (علماو) ته یې لا په زغرده ووایو. قرانکریم رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وایې ته مشرکینوته ووایه، زه د دین په تبلیغ اجر او مزدوري نه غواړم او نه زه له تکلف کوونکو نه یم. قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْـمُتَكَلِّفِينَ. (ص: ٦٨.(

**د دین په کار مزدوري اخیستل**

قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ په دې ایت کې دووه خبرې شوې وې، یوه داچې د دین په کار مزدوري اخیستل ناروا ده، او بل له تکلف نه منعه راغلې ده. هیڅ داعي او د دین هرکار کوونکی نشې کولی د دین په کار پیسې واخلې، قرانکریم مسلمانانو ته په واضحه توګه امر کړی ده چې څوک د دین په کار مزدوري نه درنه غواړي او په سمه لاره روان وي دهغو پیروي وکړئ. إتبعوا من لايسئلكم اجرا وهم مهتدون (سورة یس) او څوک چې د دین په کار پیسې غواړي دهغو پیروي نده په کار. اوس د دین په مختلفو کارونو پیسې اخیستل روا بلل کیږي، او وایې چې متأخرینو علماو روا کړې دي!. دمتأخرینو اومتقدمینو ترمنځ معلومه پوله چا ټاکلې ده؟. نه پوهیږم د قرانکریم دې صریحو ایتونو ته به متأخرین علماء څه ځواب وایې؟!. باید ووایم چې ځینې شیان دشدید ضرورت پراساس علماو روا کړې دي نو دلته په دې موضوع کې یوڅه تفصیل شته چې باید په اړه یې کره او رباني علماو ته مراجعه وشي. اوطبعا زموږ دا لوړې خبرې ځینې استثنائات لري.

**تکلف څه ته وایې**

وَمَا أَنَا مِنَ الْـمُتَكَلِّفِينَ. معجم اللغة العربية المعاصر دتكلف په اړه لیکي: حمَله على نفسه وليس من عادته ، تصنّعًا وتظاهُرًا " تكلّف الكرمَ / الألمَ ، – ابتسامة مُتكلَّفة ، – { وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ }. یعني یوکار دسړي عادت نه وي په تکلف اوتصنع سره یې په ځان حمل کوي لکه دبخیل او روغ انسان د سخا او درد تکلف کول، اویا یوچاته خندا نه ورځي په تکلف سره موسکا اوخندا کول، او دازموږ له بحث لاندي ایت هم له دې جملې نه ده. معجم مصطلحات فقهية او دلغت



نورو کتابونو هم دتکلف دامعني کړې ده. په لوړ ایت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته الله جل جلاله دوه خبرې کړې دي یوداچې دوی ته ووایه زه د دین په کار باندي مزدوري اوچنده نه غواړم اوبل داچې زه له تکلف کوونکو څخه نه یم.

## نبوي سیرت اوتکلف

اوس راځونبوي سیرت ته، عبدالله بن عباس رضي الله عنهما درسول الله صلی الله علیه وسلم په اړه وايي: هغه به په ځمکه کیناستی، په ځمکه به یې خوراک کاوه، خپل پسونه به یې تړل، او دمریې د اوربشو د ډوډۍ میلمستیاته به ورتلو. یجلس علی الأرض، ویأكل علی الأرض، ویعتقل الشاة، ویجیب دعوة المملوك علی خبز الشعیر.أخرجه البیهقي في الشُّعَب: (۷۸٤۳)، والطبراني في الكبیر: (۱۲٤۹٤)، وقال في المجمع: إسناده جید.

رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپلو ملگرو، عامو خلکو، نارینه او ښځو، پیژاندو اوناپیژاندو سره ښیخي دیوه عادي وگړي په توگه په ډېره زیاته عاجزي سره چلند کاوه، په دې اړه یو بل عجیب روایت را اخلم: رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو سړی راغی، له هغه سره یې خبرې وکړې، په دې وخت کې دهغه سړي اندامونه په ګړبیدا شوو، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته وویل: مه ویریږه ارام شه، زه پاچانه یم، زه دهغې ښځې زوی یم چې وچه غوښه به یې خوړله. عن أبي مسعود الأنصاري – رضي الله عنه – قال : أتی النبي – صلی الله علیه وسلم – رجلٌ فكلمه، فجعل تُرْعَد فرائصه، فقال له : هَوِّن علیك؛ فإني لست بملك، إنما أنا ابن امرأة تأكل القدید. أخرجه ابن ماجه: (۳۳۱۲) . دحدیثو شارحین په دې روایت کې لیکې چې دلته رسول الله دخورازیاتې عاجزي څرگندونه کړې ده، دی هغه سړي ته وایې زه دیوې عاجزې اوغریبې ښځې زوی یم، ځکه هغه غریبه وه چې وچه غوښه غریبان خوري، دایوه عاجزي اوبله داچې پلارنه مور یې یاده کړه، د پلار په یادونه کې اکثره زور، خپل اصلیت ښوول او ویاړ کول مطلب وي او دمور په یادونه کې داشیان نه وي مراد.

په یوه بل روایت کې هغه وايي: زه یوبنده یم د یوه بنده په څیر خوراک کوم او د یوه بنده په څیر کښینم. إنما أنا عبد، آكل كما یأكل العبد، وأجلس كما یجلس العبد. أخرجه أبو یعلی في مسنده: (٤۹۲۰).

په یوه بل روایت کې راغلي رسول الله صلی الله علیه وسلم وایې: په اور باندي هر بې تکلفه، نرم او اساني خوښوونکی سړی حرام دی. او هغه چې خلکو ته ورنږدې وي. حُرِّم علی النار كل هيِّن لیِّن سهل، قریب من الناس. أخرجه أحمد: (۳۹۲۸)، والترمذي: (۲٤۸۸).

## صحابه کرام او تکلف

رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل ملگرې هم په دا ډول اخلاقو اوعاجزي روزلې وو، مشرانو او کشرانو صحابه کرامو یو ډول هیڅ تکلف نه خوښاوه، په یوه روایت کې راغلي: انس بن مالک رضی الله عنه وايي موږ له عمر سره وو، هغه وویل: موږ له تکلف نه منعه کړل شوې یو. عن أنس – رضي الله عنه – قال: كنا عند عمر، فقال: «نُهِینَا عن التكلف. أخرجه البخاري: (۷۲۹۳). صحابه کرامو په دې یوه بیلگه بسنه کوو.

حامد افغان

# د اسلامي امارت په تېره دوره کې

# د شهید امیر المؤمنین مقام او خدمتونه

سید شریف

داسلامي امارت زعیم شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله داسلامي امارت دحاکمیت په تېره دوره او داشغال پرضد دروان جهاد په تېره یوه نیمه لسیزه کې نه ستړي کیدونکي هڅې او نه هیریدونکي خدمتونه کړي دي. شهید امیر المؤمنین د یو مجرب جنرال، ماهر سیاستوال، ښه مدیر او مدبر رهبر په صفت مختلفي دندي په داسي ډول ترسره کړې چې دښمن یې اغېز او کمال ته گوته په غاښ ؤ. دلته فقط داسلامي امارت دحاکمیت په ۷کلنه دوره کې د شهید منصور تقبله الله رول ته ځغلنده کتنه کوو، څکه د نوموړي دجامع شخصیت دسیاسي، نظامي، اداري او ټولنیزو ابعادو څېړل او یادول یوه لیکنه کې نشي احاطه کیدای.

په ۱۳۷۳ هش کال چې په کندهار کې دامیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په قیادت کې د شراوفساد پرضد د طالبانو اسلامي تحریک( امارت) پیل شو، ملا اختر محمد منصور د لومړنیو کسانو څخه وو چې په دې تحریک کې شامل شو،دکندهار تر نیولو وروسته نوموړی دکندهار د نړیوال هوايي ډگر دمشر په توگه وټاکل شو،دکندهار هوايي ډگر هم د وران هیواد په څېر ویجاړ او کنډوکپر شوی و، د هیڅ ډول ټرانسپورتي او پوځي الوتکو د ناستي او پرواز جوگه نه و، خو منصور صاحب په لنډ وخت کې دکندهار هوايي ډگر داسي فعال کړ چې دهر ډول الوتکو دناستي او الوت وړ وگرځید،د رادار فلج سیستم یکې له سره ورغول شو، نه یوازي داچې دځپلو الوتکو څار او رهبري به ترې کیده ، بلکي د جنوب غرب حوزې په هوايي حریم کې یې د بهرنیو الوتکو تگ راتگ هم څاره او ټیکس یې هم ځیني اخیسته، چې داسلامي امارت ډیري مالي اړتیاوي له همدې لاري پوره کیدلې.

د ۱۳۷۵ هش کال میزان په ٦مه چې داسلامي امارت فاتحو پوځونو کابل فتحه کړ، منصور صاحب دافغانستان د هوايي چلند او توریزم د وزیر په حیث مقرر شو، منصور صاحب دوزارت په مهال دافغانستان زیاتره هوايي ډگرونه ورغول او په عصري رادار سیستم یې سمبال کړل. منصو رصاحب دکندهار، هرات، کابل،ننگرهار، بلخ او کندز په هوايي ډگرونو کې د بهرنیو ترانزیتي الوتکو د ښه څار او رهنمایي په موخه د ویست دستگاه نصب کړه چې له امله یې هر کال دافغانستان په فضاء کې د تېریدونکو الوتکو څخه په ملیونونه ډالر ټیکس ترلاسه کیده.

منصور صاحب د هوايي چلند او سیاحت د وزارت په مهال ۴۴ ترانسپورتي او محاربوي الوتکې او چورلکې ترمیم او داستفادې لپاره چمتو کړې:

دریاین۱۲ - څلوراین۳۲ - د وهاین۲٦

جنگي الوتکې

اته جیتمیگ۲۱ - دری جیتسو۴۲۰M - پنځه جیتسو۲۲

هلیکوپتر:

شپږ می۸ - اته می۳۵ - پنځه ایل۳۹

ترانسپورتي الوتکې:

یوه روسي ساخته۴۱ډوله او یوه این۲۴)) اوداریاناافغان هوای شرکت امریکایي بوینگ الوتکې.

منصـور صـاحب د ۴۴ بیلابیلـو الوتکو او طیارو پـر ترمیم سربیره پـر افغانســتان د اقتصــادي یــو طرفــه بندیزونو سره سره ،پنځه روسیساخته ترانسپورتي الـوتکي پـه ازادبـازار کـې وپېرودلې.

دهوایي ځګرونو ساتل او سمبالول په هر حالت په ځانګړ ي توګه دجګړې پـه جریـان کـې خـورا حیـاتي ارزښـت لري،د دښمن سنګرونه تر برید لانـدي نیـول کیـږي،پوځیـان لـه یـوې سـیمي بلې ته دهوا لـه لاري پـه اسـانۍ او لنډ وخــت کــې انتقــالیږي، پــوځي او لوژیســتیکي تــوکي، درمــل، طبــي عمله،ټپیان اود اړتیـاوړ مختلف شیان دضرورت او مقصـود تـر ځایـه رسـول کیږي.

دمنصـور صـاحب د ښـه زیـار او مدیریت له امله له ډیـر وخـت وروسـته یو ځل بیا افغانان دحـج دفریضـې دادا‌ء کولو لپاره له خپل هیواد څخـه پـه خپلـو الوتکو کـې سـعودي تـه ولاړل. ممکـن ځیني خلګ همدا دومره سـتر کـار ونـه ګڼي، خو هماغه مهال په جنګ ځپلي افغانستان کې له داخل څخـه پـه خپلـو الوتکو کـې بهـر تـه سـفر داسـي لویـه لاسـته راوړنـه او ابتکـار و، چـې ولـس ډیــر پــرې خوشــحاله، هوســا او دګاونډیانوله احتیاج څخه پرې خلاص شو.

پرافغانســتان دامریکــا د یرغــل دپیـل پـه مهمواهـدافو کـې دکنـدهار هوایي ډګر و،دهوایي ډګر مسؤلیت دمنصـور صـاحب پـه غـاړه و،د مځکـي لـه لاري دګـل اغـا شیر زي اوخالد پښتون په مشري کرایي وسله والو پر هوایي ډګر حملې کولې، کوردینات یـې امریکایي ځواکونو ته ورکول او دهوا له لاري بي ۵۲،ایف ۱٦ الوتکو او کروز توغنـدیو دشـپې او ورځي هوایي ډګر دحملو لاندي نیولی و،د کندهار هوایي ډ ګر هغه ځای ؤ چـې پرافغانستان د یرغل له پیل څخه بیا دکنـدهار تـر سـقوط پـوري د مجاهـدینوخوار پیـاوړی دفـاعي سـنګرؤ، د کندهار د هوایي ډګر اهمیت په دې کي و چې دکندهار داشغال دروازه وه،که همدا هـوایي ډګـر پرې ښودل شوی وای، د یرغل په لومړۍ اونۍ کي به کنـدهار دسـقوط لـه خطـر سره مخـامخ شـوی وای. منصـور صـاحب ددې هـوایي ډګـر مسـؤل او عمـومي قومانـدان و چـې پـه ډیـر شجاعت او جرئت سره یې دوې میاشتې پرله پسې د شپې او ورځي ددې ځای ساتنه وکړه.

## پر منصور صاحب دامیرالمؤمنین رحمه الله داعتماد یوه بېلګه:

هوایي ډګرونه دنظام په بقا او دفاع کې خورا مهم رول لري،له همدې امله نظام تـه ډیـر وفادار کسان دهوایي ډګرونو دمسؤلینو په توګه غـوره کیـږي. پرمنصـور صـاحب دامیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د ډیـر اعـتماد او ښـه خـدمت لـه وجـې نومـوړي تـه دکنـدهار دهوایي ډګر مسولیت او د هوایي مدافعې قوماندانې وسپارل شوه او نوموړی (منصـور صـاحب) داسلامي امارت تر پایه دهوایي چلند دوزیر اوهوایي عمـومي مـدافعې د قومانـدان پـه صـفت پر مهمو دندو پاته شو،منصور صاحب د خپلې دنـدي لـه پیلـه تـر ترپایـه اوږده مـوده کـې لـه مرحوم امیر المؤمنین سره نژدې په کندهار کې پاته شو،حال داچې د وزیرانو شـوری، کابینـه او نور وزیران کابل کې اوسیدل.

شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور تقبله الله د ډیرو نیکو اوصافو څښـتن و، الله تعالی منصور صاحب ته په سیاسي، نظامي او اداري برخو کـې د داسي لویـو کـارونو اسـتعداد ورکړی و چې مسلکي او تجربه لرونکي کسان یې له ترسره کولو څخه عاجز وو.

د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد دوفات له اعلان څخه وروسته امریکا، کابل رژیـم او پـه سـیمه کـې بیلابیلـو جاسـوسي شبکو اسلامي امـارت کـې د انشـعابونو هڅـي وکـړې، خوشهید امیرالمؤمنین په ډیر جرات او تدبیر سره داسلام ، افغانستان او پـه ځـانګړې توګـه داسلامي امارت ددښمنانو بیلابیلې دسیسې او شـومي مـوخي خنثـی کـړې. نـه یـوازي داچـې اسلامي امارت یې له ټوټه کیدو څخه وژغوره، بلکې په ډیر لنډ وخت کـې یـې اسـلامي امـارت په سیاسي او پوځي ډګرونو تر بل هر وخت لاپیاوړی کـړ .حیـف داچـې داسـلامي امت دغـه ستر سپه سالار ، مبتکر زعیم،خاکسار قائد او دخدای جل جلالـه د رحمـت سـیوری( شـهید امیر المؤمنین رحمه الله ) ډیر ژر دامت مرحومـه او بالخصـوص دافغـان مجاهـد ولـس لـه سره واخیستل شو.

# د حکمتيار او طالب سوال وځواب

تراب افغان

حکمتيار: راځه سوله وکړه لکه ما چې وکړه "والصلح خير"؟

طالب: سوله موله نشته دا وچه کلکه تسليمي ده پر تا دې مبارک وي.

حکمتيار: جګړه پرېږده؟

طالب: دا جګړه ده که جهاد؟ جګړه مې هيڅکله نده کړې او جهاد هيڅکله نه پرېږدم.

حکمتيار: دا نا مقدسه جګړه ولې کوئ؟

طالب: وا سرناخلاصې په غوږو درونږ يې؟ که دماغ دې کار نه کوی؟ جګړه نه کووم دا يو مقدس جهاد دی او دا نه پرېږدم تر هغه چې "لتكون كلمة الله هي العليا"

حکمتيار: وا طالبه په زور حکومت نه کېږي او نه ستا د زور حکومت منم؟

طالب: زه هم وايم په زور حکومت نه کېږي او نه يې منم اوس خو (۴۲) ملکونه او نيمه نړۍ او د هغوي عسکر، جنګي جهازونه او بې خرته ډالر درسره دي چې ټوله نړۍ مو پر ټولو امکاناتو مرستې ته را ودانګي بيا هم پر زور يې نشې راباندې منلی او نه کولۍ.

حکمتيار: ته لا پيدا نه وې ما جهاد کاوو؟

طالب: بلې دا منم چې زه لا پيدا نه وم چې تا جګړه کوله په ډېر معذرت د جهاد اصطلاح مه ورته کاروه بلکې جګړه دې د قدرت د حصول لپاره وه اوس يې بڼه بدله شوه چې قدرت او دنيوي ثروت د رسېدو لپاره لساني او لفظي جګړه کوئ البته ستا له مقصده ډېرې ناخبرو په سپېڅلې اراده جهاد کاوو هغوی ته مو سلام او هغوی ته به دا خپله کړنه څنګه توجيه کوی زما په آند د هغوي صادقه مسلماني او ستا خوراچالاکي ممکن پر دې دنيا ځان ترخلاص کړي؛ او زه جهاد کووم چې ترڅو اشغال ختم او اسلامي حاکميت راشي ترڅو پورې مې چې دا مقصد نه وي حاصل جهاد به مې هم جاري وی.

حکمتيار: ته لا د مور غېږ کې وې ما جهاد کاوو؟

طالب: يو ځل مې درته وويل چې په جهاد کې نه بلکې په جګړه کې، د کابل په ورانولو، د مسلمانانو په وژلو او پاټکونو کې واقعا له ما مخکې يې او ښه تجربه او سابقه په کې لرې او په دې کې درته تسليم يم منم دي.

حکمتيار: دا ولې پر داعش د بمونو مور استعمالېږي او ستاسې لويو لويو قطارو ته څه نه ويل کېږي؟

طالب: سپين ږيری شوی يې حواس دې لکه چې پوره کار نه کوي داعشيان پخپله وايي چې بم پر مونږ نده استعمال شوی او نه زمونږ کوم جنګيالی ورکې وژل شوی او ظاهر قدير وايي چې بم پر يو معدن (کان) استعمال شوی دی.

او د طالب ټول نظام يې له منځه يوړ او په زرګونو يې ورشهيدان کړل تر اوسه

ته د فيل غوږ کې ويده يې اوس هم ته نورې ببولالې غږوي؛ لکه چې پر عقل سربېره پر سترګو د هم پردې راغلې دي.

حکمتيار: طالبۀ ته کوم سوال مال لرئ؟

طالب: بلې لرم يې که اجازه راکړئ.

حکمتيار: وايه سوال کوه!

طالب: دا دومره کاله د مسافرۍ او غرو ژوند دې اختيار کړی و اوس داسې ژر ناڅاپي ښارونو ته راداخل شوې د چا په مشوره او د کوم عالم په فتوا؟

حکمتيار: ګوره طالبه ډېر ناخبره يې اول خو زه هيڅکله استاد نلرم چې حتې بيا مشوره ورسره اوکړم او بل زه له ځان پورته عالم، هوشيار، پوه او دانا بل څوک نه وينم نو د مشورې کوم حاجت نلرم پر ځان کره او پوره يم نو هر څه پخپل سوچ کووم.

طالب: ته دوه دعوې لرې لمړۍ دا چې ته شيخ القرآن والحديث علامه او د قرآن لوی مفسر- يې او ډېرې کتابونه او تفسيرونه دې هم ليکلي دي او دوهمه دعوه دې دا وه چې زه له غرو څخه هوارې ته ښکته شوم نو پوښتنه مې دا ده چې په داسې حال کې راځرګند شوې چې پايڅې دې له ښنګرو ښکته وې او چارسده والې څپلۍ دې پر پښو وې او ډېر تر او تازه وې نو ايا دا دواړه عملونه دې له دواړه دعوو سره په ټکر کې نه دي څه ځواب يې لرې؟

حکمتيار: هههههههه طالبه ډېر وران يې هرې نکتې ته دې پام وي ښه به دا وه چې دا پوښتنه دې خصوصي پټه راڅخه کړې وی خو دومره به مختصرا درته ووايم لکه څنګه چې مې د پخوا په نسبت فکر، عقيده او نظريه بدله ده نو همدارنګه به پخپل هيئت، صورت او لباس کې هم تغير راولم څه ساده ګل طالب يې ته وايې چې دهغو غرو نظامي لباس په ښار کې د ډيموکراسۍ لاندې هم پلې کړم اوس دلته نو ازادي ده که د شيرزي او عطاء نور په څير له صابوني مخ، پينټ شيټ او نکټايې سره را څرګند هم شم بايد نيوکه ونکړې ته صبر څه وخت وروسته به ما په نورو نورو سټايلونو کې وګورئ دا هرڅه د ډيموکراسي له برکته.

طالب: دا اوسنی قول و عمل دې له پخوانيو کړنو سره کاملا په ټکر او تضاد کې ده پر کوم يو يې د بطلان کرښه راکاږې؟

حکمتيار: پخوا ماشومتوب، هلکتوب او ځواني وه دومره پوه نه ووم اوس مې ايله عقل سر ته راغلو او په عقل پوره او کامل شوم پخوا مې چې څه کړي ډېر بد مې کړي معذرت غواړم ما وبخښئ او پر ټولو يې د بطلان کرښه راکاږم په دې هيله چې معاف مې کړئ.

او زما اطاعت کوونکي او پلويان دې زما اوسنی درېځ تعقيب کړي او همدا سم درېځ دی.

طالب: هغه کورنۍ چې ستا په امر جنګيدلي شهيدان، زخميان او اسيران يې ورکړي څه ويل ورته غواړئ؟

حکمتيار: بس د خجالت او شرمندګۍ دوه لاسي سلام ورته کووم.

طالب: بله کومه پوښتنه نلرم.

حکمتيار: تازه د سولې پروسې سره يوځای شوی يم کارونه او مصروفيات مې ډېر دي نور سوال و جواب به بل وخت سره وکړو؟

طالب: مننه خوښه مې ده ته ورځه امريکايي سفارت ته د انحناء، احترام او اداب مراتب وړاندې کړۀ ترخو ډالر ترلاسه کړئ؛ او زه هم مصروف يم ملګرو ويل چې امريکايي قطار راروان دی نو کمين ته ورځو خو پام چې امريکايان مو مردارکړل نو د ډالرو هضمولو لپاره د دوستم په څېر امريکايانو ته شهيدان درڅخه ونه ويل شي چې دومره ذلت مې بيا درباندې پېرزو ندی.

مننه نوره مرکه به بيا سره وکړو.



# د بندیانو د اعدام هدف څه دی؟

عبد الغفار داعي

وروسته تر هغه چې په پلچرخي زندان کې د یو شمېر طالب بندیانو د ممکنه اعدام ګونګوسې رسنیزې شوې، طالبانو خبرداری ورکړ چې که بندیان یې اعدام شول د دولت عدلي او قضايي ارګانونه به خپل مهم نظامي اهداف وګرځوي.

که څه هم په طالب بندیانو د تعذیب او شکنجو لړۍ په مسلسله توګه روانه ده خو په دې وروستیو کلونو کې د طالبانو د پسرلنیو عملیاتو د اعلان په شپو ورځو کې دا موضوع په پاروونکي ډول رسنیزه او مطرح کیږي.

تېر کال د مې میاشت په همدغو ورځو کې، چې طالبانو تازه خپل عملیات اعلان کړي وو، دولت په پلچرخي زندان کې شپږ تنه طالب بندیان اعدام کړل. پیښې د طالبانو توند غبرګون راوپاراوه او هماغه و چې د کال په اوږدو کې یې عدلي او قضايي منسوبین په پرلپسې ډول تر بریدونو لاندې ونیول او د هیواد په مختلفو برخو کې یې سلګونه قاضیان او څارنوالان په بمي چاودونو، سرتیرو او غلچکي بریدونو کې له منځه یووړل.

پوښتنه دا ده چې ولې دولت له تېرو دوه کلونو راهیسې هغه وخت د بندیانو په اعدام لاس پورې کوي چې طالبانو پسرلني عملیات تازه اعلان کړي وي؟

په دې کې شک نشته چې د دولت امنیتي او نظامي منسوبین د طالبانو د بریدونو درونډ قیمت پرې کوي ځکه چې همدوی د جګړې په لومړۍ کرښه کې ولاړ وي. له بلې خوا دولت په دې ښه پوهیږي چې د طالب بندیانو اعدام به هغوی د هیواد د عدلي او قضايي ارګانونو پر ضد راوپاروي. خو دا چې بیا هم په دغې زماني مقطع کې، چې طالبانو تازه د ټوپک په ماشه ګوته ایښې، په ورته پاروونکو اعمالو لاس پورې کوي، دا ثابتوي چې دولت په لوی لاس خپل عدلي او قضايي ارګانونه د طالبانو نظامي خرپ ته برابروي ترڅو د پوځي او نظامي ارګانونو له اوږو څخه دغه درونډ بار یو څه سپک کړي.

طالبان خو شرعي او اخلاقي مسئولیت او مکلفیت لري چې په هر قیمت د خپلو بندیانو غچ او انتقام واخلي، خو دا چې دولت له عدلي او قضايي ارګانونو څخه د سپر کار اخلي ترڅو د طالب هغه انرژي چې په عسکر او اربکي مصرفیږي، د قاضي او څارنوال په مرګ مصرف شي، د دولت په نزد د دغو ارګانونو د بې ارزښتۍ ښکارندویي کوي.

پوښتنه دا ده چې ایا د هیواد عدلي او قضايي ارګانونه به د دولت د هغه اقدام په وړاندې غبرګون وښيي چې په لوی لاس یې د طالبانو د برید خولې ته برابروي ترڅو د طالبانو د بریدونو تلفات د عسکر او قاضي، پولیس او څارنوال ترمینځ وویشي او په خپل ځان د ممکنه بریدونو فشار تر یوه حده راکم کړي؟

دا چې د هیواد محاکم په ځلونو د نړیوالو سازمانونو لخوا په فساد کې تر خولې ډوب بلل شوي او د وړتیا، کفایت او عدالت له لحاظه په پراخو نیمګړتیاوو تورن شوي، په دغسې حالت کې د اعدام په څېر درنې سزا تطبیقول له یوې خوا پخپله یو جنایت دی او له بلې خوا د دغه جنایت له تطبیق څخه د نظامي تلفاتو په مخنیوي کې ابزاري استفاده د هیواد له عدلي او قضايي قشر سره ناخواني، بربنډ خیانت او جفا ده.

اوس دا په قاضیانو او څارنوالانو پورې اړه لري، چې ایا له دولت څخه د دغو پاروونکو (ستراتیژیکو) اعدامونو پوښتنه کوي او که خپل سرونه د امنیتي ارګانونو د ساتنې لپاره نذرانه کوي، کوم چې برعکس د دوی د ساتنې وظیفه په غاړه لري؟!

# طالبان ټوکې نه کوي

جواد څارګر

په شاهین قول اردو استشهادي برید دمزدورو عسکرو پر ضد، دطالبانو په بریدونو کې کابو تر ټولو توند برید و

دبلخ برید دطالبانو له لورې تعرضي برید و، یا په بله اصطلاح دطالبانو غځ و چې له مخالفینو یې واخیست.

تر دې وړاندې طالبانو په مکرر توګه له عسکرو غوښتي چې له خپلو اوږو دې، دغرب مورچلې نه جوړوي، او نه دې دغرب دشومو موخو دتحقق لپاره، دغربي جنرالانو په نغوته دخپلو افغانانو پر ضد ګولۍ چلوي.

له بده مرغه چې افغان ځواکونو! نه یواځې دا چې دطالبانو درد یې درک نه کړ، بلکې په پرلپسې توګه، دطالبانو پر ضد درانه عملیات پر مخ وړي، او حتی دشهید شویو طالبانو جسدونه په پوځي ګاډو پورې تړي، کشوي، بیا ورسره انځورونه کاږي او رسنیز کوي یې.

شاهین قول اردو دهیواد په شمال کې دطالب مجاهدینو پر ضد دعملیاتو مشري پر غاړه لري، او آن دشپنیو عملیاتو پروګرام له همدې ځایه سرچینه اخلي.

په دې وروستیو کې دطالبانو دوه والیان په شهادت ورسېدل؛ ددوی دواړو دشهادت پلان له همدې ځایه ترتیب شوی و، او دهمدې قول اردو عسکر، ددوی دشهادت په عملیاتو کې شریک ول.

دا چې دکندوز د والي دشهادت په اعلامیه کې طالبانو دغچ اخیستلو هوډ کړی و، هغه یې په بلخ کې رښتیا کړ او دشاهین پر نوم قول اردو یې کابو په کنډواله بدله کړه.

دبلخ خونړی برید چې ورکې سلګونه عسکر قتل او زخمیان شول، دبلواکې اداري چارواکو، او ددوی ناپوهه عساکرو ته یوه خاموشه ګوتڅنډنه وه.

طالبانو دوی ته وښودله چې موږ هر وخت او هر ځای کولای شو، ددوی کمربندونه مات کړو، دفاعي سستم یې وننګوو او په خورا اسانۍ سره ددوی کرایه عساکر ووژنو.

همدا لامل دی چې طالبان په مکرره توګه له عسکرو غواړي چې له خپلو دندو لاس پر سر شئ تاسو فقط دسون مواد یاست، او نړیوال او داخلي سوداګر مو دلته دجګړې لپاره په رغول شویو بټیو کې دسنګ زغال په څېر کاروي.

دنظام عسکر چې ډېری یې دیو څو افغانیو دپیدا کولو لپاره عسکرۍ ته تللي، واقعاً دترحم وړ دي، او طالبانو هم تر ډېره پر دوی له ترحم او عاطفې کار اخیستی، مګر ددوی له لورې تل احمقانه تعامل او عارفانه تجاهل دطالبانو غصې وپاروي، چې دعسکرو لپاره په خسرالدنیا والآخره منتج شي.

د اردو عسکره؛ لا هم سر وخت دی، کولای شې خپلې اوږې له پردي ټوپکه سپکې کړې، دورور پر ضد دپورته کړي ټوپک شپېلی ماته کړې او دهیواد په کوم واټ کې دحلال رزق درک وکړې.

ته په دې جګړه کې دسنګ زغال حیثیت لرې، دسترو ټېکدارانو دګټو لپاره سوځول کېږې او له خواره ژونده بې برخې کېږې دا جګړه ستا نه ده، او ستا دګټې هم نه ده، ددې جګړې لپاره تاته دروا‌غجنه روحیه ځکه درکولای کېږي چې ژر اور واخلې.

ته لېږ پر خپل چاپېریال نظر وځغلوه او بیا دې خپله مبارزه! وارځوه چې ته دچا پر ضد جنګېږې، څوک وژنې او پر چا توپونه وروې؟

ته پر همهغه کلي توپونه نه وروې چې تا ورکې خاپوړې کړي؟

همهغه مسجد نه بمباردوې چې تا ورکې الف، با، تا، ویله؟

همهغه ملا او طالب نه وژنې چې ستا په درد، غم او خوښۍ کې به له هر چا وړاندې، درته ولاړ و او پر شونډو به یې خوږه موسکا خپروه؟

د اردو عسکره؛ ترڅو به ځان په دوکه کې ساتې، او دکرایه قاتل دنده به پر مخ وړې؟

که پر ځان دې رحم نشته، په افغان رحم وکړه

په دې وران افغانستان رحم وکړه او دغربیانو له چوپړه لاس واخله.

طالبان ټوکې نه درسره کوي، که یې یو وار شونډې درته وژوولې بیا دې سابه سم در په مالګه کوي

دا چې درته غلې دي، دا یې زړه درد دربانډې کوي، غولېدلی دې ګڼي، احمق دې ګڼي، دتېښتې موقع درکوي او ته لګه دبازار لیونی هر ملا او طالب په تېرو ولې.




# د روژي حکمت او فلسفه!

ليکنه: م حماد

### د انسان د پيدايښت مقصد

الله جل جلاله انسان د خپل عبادت لپاره پيدا کړی دی، لکه چې فرمايي : ((وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ)) [الذاريات:٥٦] يعني: ما پيريان او انسانان يوازې د خپل عبادت لپاره پيدا کړي دي؛ نو ځکه دنيا ته د انسان د راتلو يوازينۍ موخه د الله جل جلاله عبادت، او د آخرت ابدي ژوند ته توښه برابرول دي.

ايا پرښتې د عبادت لپاره بس نه وې؟

اوس که د چا په زړه کې دا سوال پيدا شي چې د دې مقصد لپاره خو الله جل جلاله له پخوانه پرښتې پيدا کړي وې؛ نو بيا د انسان د پيدا کېدو اړتيا څه وه؟ ددې ځواب دادی چې پرښتې الله جل جلاله د عبادت لپاره پيدا کړي وې؛ خو دهغوی جوړښت داسې دی چې خلقتا په عبادت مجبوره وې؛ ځکه چې د هغوی په فطرت کې د عبادت ماده نغښتې وه او له عبادت پرته يې په خلقت کې د معصيت او نافرمانۍ ماده نه وه نغښتې؛ خو د انسان جوړښت ددې برعکس دی، د هغه په جوړښت کې يې د ګناه او معصيت ماده هم نغښتې ده او بيا يې ورته امر کړی چې د خپل رب عبادت کوه، له همدې امله پرښتو ته عبادت کول آسان کار و او له انسان سره خواهشات، جذبات، خوځښتونه، اړتياوې او د ګناهونو هڅونکي شته؛ سره له دې ورته الله جل جلاله امر کړی چې له دې ټولو شيانو به ځان ژغورې او زما عبادت به کوې.

### عبادات په دوه ډوله دي

دلته يوه بله خبره په پام کې نيول اړين دي هغه دا چې له يوې خوا ويل کيږي چې د مومن هر کار عبادت دی يعنې که يو مومن ښه نيت ولري او داسلام له لارښوونو سره سم ژوند تېروي؛ نو د هغه خوراک ، خوب، خندا، کاروبار، له مېرمنې سره خندا او خبرې، راشه درشه، دا ټول په عبادت کې شمېرل کيږي، اوس پوښتنه دا ده چې که له يوې خوا د مؤمن دا ټول حرکات په عبادت کې شمېرل کيږي او له بلې خوا لمونځ هم عبادت دی نو بيا ددې دواړو عبادتونو ترمنځ توپير څه دی؟ نو ددې دواړو خبرو ترمنځ توپير پېژندل اړين دي او ځينې خلک ددې توپير د نه پېژندلو له امله له بېلاريو سره مخ کيږي.

### لومړی ډول: بلا واسطه عبادت

د دې دواړو عبادتونو ترمنځ توپير دادی چې يو ډول عبادت هغه دی چې مخامخ عبادت دی چې موخه ترې يوازې د الله جل جلاله رضا ترلاسه کول دي او بل مقصد نه لري، دغه ډول عبادتونه يوازې د الله جل جلاله د بندګۍ لپاره ټاکل شوي دي لکه: لمونځ، له لمانځه څخه يوازينۍ موخه دا ده چې الله جل جلاله ته سر ښکته کړل شي او بندګي يې وشي؛ نو دا د الله جل جلاله مخامخ عبادت دی چې بله موخه نه لري، دغه راز روژه، زکات، حج، عمره، ذکر، تلاوت، دا ټول هغه عبادتونه دي چې دالله جل جلاله له رضا پرته بله موخه نه لري.

### دويم ډول: بالواسطه عبادت

د لومړي ډول برعکس ځينې اعمال هغه دي چې اصل مقصد يې نور څه وو، لکه دنياوي اړتياوې او خواهشات پوره کول؛ خو الله جل جلاله د خپل ځانګړي فضل له مخې مؤمن ته وويل چې که ته خپل دنياوي کارونه هم په ښه نيت، زما د دين په چوکاټ کې او زما د محبوب صلى الله عليه

وسلم له طریقو سره سم ترسره کړي؛ نو زه د همداسې کارونو په بدل کې هم هغه ثواب درکوم لکه د لومړي ډول عبادت په بدل کې یې چې درکوم؛ له همدې امله دا مخامخ عبادت نه دی؛ بلکې بالواسطه عبادت دی او دا دعبادت دوهم ډول دی.

## بلا واسطه عبادت غوره دی

له دې تفصیل څخه دا څرګنده شوه چې مخامخ عبادت له بالواسطه عبادت څخه غوره دی، او ددې درجه ترهغه بل زیاته ده؛ له همدې امله الله تعالی چې د پیریانو او انسانانو د پیدایښت هغه خبره د کوم عبادت لپاره کړې ده، له هغې څخه لومړی ډول عبادت مراد دی، نه دوهم ډول چې بالواسطه عبادت دی([۱]) .

## د روژې حکمت او فلسفه

د رمضان روژې په فرضیت کې د الله جل جلاله لوی حکمتونه، غوره مقاصد او ښې پایلې نغښتې دي چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱ -په زړه کې اخلاص او تقوی رغېدل، ځکه چې له روژې څخه د روژه نیونکي یوازینۍ موخه د الله جل جلاله رضا او آخرت ته توښه برابرول او د الله وېره مقصد وي، له همدې امله د روژې د فرضیت آیت هم په دې ټکو پای ته رسېدلی چې: لعلکم تتقون. معنا دا چې ښایي تاسو د همدې فرضیت په ادا کولو د تقوی درجې ته ورسیږئ او ځانونه له هغه څه څخه وساتئ چې نه درسره ښایي.

۲ -روژه روح ته غذا ورکوي، نفس ته د استقامت ځواک ورکوي او د زړه په پاکوالي کې مرسته کوي.

۳ -روژه په انسان کې ارادي ځواک، د تکل رښتینوالی، او د نفس د ناوړه عادتونو له منځه وړلو ځواک پیاوړی کوي او د صبر په مټ د تکلیفونو ګاللو ورتیا وربخښي. دغه راز روژه د انسان عقل پر شهواتو غالبوي چې بیا د همدې په مټ د شر پر ځای د خیر کارونو ته ډېر متوجه کیږي.

۴ -روژه بشري نفس ته هم روزنه ده، د انسان عادت دادی چې د یو نعمت په ارزښت هله پوهیږي چې ورڅخه بې برخې شي او یا ورته اړ شي؛ نو روژه نیونکی چې کله د لوږې درد ووینې، د نېستمنو او بې وزله خلکو له حاله خبریږي او د هغوی مرستې او لاسنیوي ته یې پام را اوړي.

۵ -په روژه نیولو کې له روحاني مخلوق او مقربو پرښتو سره مشابهت دی؛ نو مسلمان ته ښایي چې په روژه کې د پرښتو په شان یوازې د الله په ذکر، تسبیحاتو، تلاوت او دعاوو بوخت وي او یوازې د خپلې په غم کې نه وي ورک([۲]).

٦ -روژه انسان ته د امانتدارۍ او د الله د څارنې درس دی؛ ځکه چې روژه نیونکی له خلکو پسې شا هم د خوراک-څښاک له نعمتونو ځان محروموي معنا یې داده چې یوازې له الله ډاریږي.

۷ -روژه انسان ته نظم او انضباط ور ښیي، ځکه چې د انسان نفس په بېلابېلو وختونو کې د خوراک-څښاک غوښتنه کوي؛ خو روژه یې دا غوښتنې محدودوي او په دې ډګر کې یې هم د نړۍ په لوربر کې له مسلمانانو سره یووالي ته رابولي، هغوی چې ټول په یو وخت روژه نیسي- او په یو وخت یې ماتوي؛ ځکه چې د ټولو رب یو او عبادت یې یو دی.

۸ -روژه له نفس سره جهاد دی او د دنیا د ګندګیو او ګناهونو څخه د پاکوالي او د خواهشاتو د ماتولو لپاره ښه چاره ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي: اې د ځوانانو ډلې! له تاسو چې څوک وس لري هغه دې نکاح وکړي؛ ځکه چې دا د سترګو ښه ټیټوونکی او د شرمځای پاکوونکی دی، او څوک چې وس نه لري هغه دې روژې ونیسي؛ ځکه چې دا ورته د شهوت له منځه وړونکی دی.

کمال بن همام وایي: روژه له توحید او رسالت وروسته د اسلام دریم رکن دی، الله د یو شمېر ګټو لپاره مشروع کړې ده چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

روژه د اماره نفس ساکنوونکې او د بدن د ټولو جوارحو او حواسو د سرغړونو مخ نیونکې ده؛ ځکه چې له روژې سره د جوارحو حرکات کمزوري کیږي، له همدې امله ویل کیږي چې کله خېټه مړه شي، د بدن نور غړي وږي شي او چې خېټه وږې شي، نور غړي ماړه شي.

بله دا چې په روژې نیولو سره د فقیرانو او نېستمنو له حالت او لوږې سره مشابهت دی، چې له امله یې د الله په وړاندې د مسلمان درجې لوړیږي([۳]) .

[۱] اصلاحي خطبات ۶۴/۱۰-٦٧ لیکوال: مفتي محمد تقي عثماني

[۲] حکمة التشریع وفلسفته: ۱۳۲-۱۳۷ط: المکتبة الحقانیة

[۲] : الفقه الاسلامي و ادلته ۵۰۰/۲]

# تقوا او روژه

حامد افغان



د تقوا د خپلولو له پاره الله جَلَّجَلَالُهُ بندگانو ته مختلفې لارې چارې بیان کړې دي او داراز مختلف وختونه یې تعیین کړي دي چې یو مهم عمل او ځانگړی وخت یې د رمضان میاشت او په هغه کې روژه ده دا میاشت د تقوا ترلاسه کولو له پاره کلنی معلوم او محدود وخت ده، د دې د فرضیت په اړه چې کوم ایت راغلی ده د هغه په پای کې د روژې نیولو موخه او هدف تقوا ترلاسه کول ښوول شوي دي: { لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ } (البقرة : ۱۸۳. (

امام الرازي رحمه الله د دې جملې په تفسیر کې لیکي: په روژه سره تقوا ترلاسه کیږي ځکه په روژه سره شهوتونه او نفسي غوښتنې کمزوري کیږي روژه د گیډې او فرج شهوتونه وژني او خلک په دنیا کې د دې دوو شیانو له پاره منډې ترړي وهي څوک چې په سمه توگه روژه ونیسي د دې دواړو بغاوت ایل کړي، د گناهونو او شهوتونو لارې یې وتړل شي او په دې توگه تقوى ترلاسه کولو ته لاره هواره شي. مفاتيح الغيب ، للرازي ، في تفسير قوله تعالى : ( كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ) الآية.

په قرانکریم کې په شپږو ځایونو کې په تشریعي موضوعاتو له خبرو وروسته { لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ }، راغلي دي او په شپږو نورو ځایونو کې { لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ } راغلي دي. دا راز تیرو ټولو امتونو او موږ ته د تقوا امر او وصیت شوی ده قرانکریم وایي: وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ وَإِيَّاكُمْ أَنِ اتَّقُوا اللَّهَ (النساء : ۱۳۱) ، یعني ستاسو مخکې چې کومو خلکو ته کتاب ور کړل شوی ده او تاسو ته موږ وصیت کړی ده چې تقوا غوره کړئ.

رسول الله صلى لله علیه به کله کله ځیني صحابه کرامو ته د تقوا وصیت کاوه ابوذر رضي الله عنه ته یې یو وخت وویل: : « اتقِ اللّٰه حيثما كنت » هرچای چې یې له الله نه ویریږه. (أخرجه الترمذي : كتاب البر ، رقم ۱۹۸۷ ، وقال : هذا حديث حسن صحيح).

عرباض بن سارية – رضي الله عنه – وایي: موږ ته رسول الله – صلى الله عليه وسلم د سهار لمونځ په جماعت راکړ له هغه وروسته یې ډیر په بلاغت سره وعظ راته وکړ داسي چې سترگو اوښکې وبهولې او زړونو ته ډار ننوت یوه کس ورته وویل داسي برېښي لکه دا چې د خدای پاني وعظ وي، موږ ته وصیت وکړه، رسول لله صلى لله علیه وسلم وویل: تاسو ته وصیت کوم چې له الله نه ویریږئ د امیر خبره اورئ او پیروي یې کوئ. عن العرباض بن ساريه رضى الله عنه قال صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم الصبح فوعظنا موعظة بليغة ذرفت منها العيون ووجلت منها القلوب ، فقال قائل : يا رسول الله ! كأنها موعظة مودع ؛ فأوصنا ! فقال: أوصيكم بتقوى الله والسمع والطاعة ... رواه الترمذي : كتاب العلم ، رقم ۲۶۷۶ ، وقال : هذا حديث صحيح.

أنس – رضي الله عنه – وایي: رسول الله صلى الله عليه وسلم ته یو سړی راغی او ورته ویې ویل: یا رسول الله ! په سفر ځم د سفر توښه راکړه هغه ورته وویل: « زوّدك الله التقوى » یعني الله دي تقوا زیاته کړه. وروسته یې نوري خبرې هم ورته کړې خو پیل یې په تقوا وکړ.الترمذي : كتاب الدعوات ، رقم ۳٤٤٤.

رسول الله – صلى الله عليه وسلم – به چې د غازیانو ډله لیږله د هغو مشر ته به یې د تقوا وصیت کاوه. أخرجه مسلم : كتاب الجهاد ، رقم ۱۷۳۱ .

که په قرانکریم کې د نورو انبیاو لکه نوح، هود، صالح، او لوط علیهم السلام وصیتونه وگورو هغوی هم خپلو امتونو ته همدا د { أَلَا تَتَّقُونَ } وصیت کړی ده.

عاکف.راشد

# دشجاعت ، تقوا ، سیاست اوخواخوږی دنګ منار

## شهید مولوي محمدداود جلالي ( رحمه الله)

زمونږ د تاریخ زرینې کرښې تل د ننګیالیو زلمیو په زرینو کارنامو او ویاړونو رنګینې وي د اسلام او مسلمانانو تاریخ تل د شجاعت، غیرت، او میړانې له داستانونو نه ډک وي، خو تاریخ هغه وخت ډیر جالب وي چې یو ملت په ډیر کړاو او سختیو کې تش لاس د یو مغرور او ستر طاقت په رانسکورولو بوخت وي که مونږ تیر تاریخ کې د ابراهیم ع او نمرود کیسې لولو د موسی ع او فرعون یاد په ذهن کې راولو د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د سختیو ورځې او د مشرکانو ظلم او ستم او غرور لولو وروسته د دوی بریا او د دښمن زوال او ناکامي ننی تاریخ مو هم له ورته کارنامو ډک دی نن مو هم یو اتل او سپیځلی طالب جان ددې عصرله لوی زبر ځواک سره لاس او ګریوان دی

غازي طالب د نړی مغرور طاغوت له ټول تخنیک او تکتیک سره سره تیښتې ته اړ کړی او د لوی خدای په نصرت ډیر زر ده چې بریا په خپل نوم ثبت کړي .

نن درسره داسلام اوجهاد دیوه نومیالي اتل ژوند اوکارنامي شریکوو هغه اتل چې دشجاعت، تقوا، سیاست اوخواږی دنګ منار یعني( شهید مولوي محمد داود جلالي تقبله الله )

دجهاد او مبارزې، دغه ریښتونی داعي،دغیرت، میړانې، شجاعت، حوصلې او استقامت غر شهید مولوي محمد داود جلالي د شهید قومندان جلات خان ځوی د حاجي عجب نور لمسی په قوم احمدزی په کال ۱۳۵۱ هجري شمسي کې د لوګر ولایت د خوشي ولسوالۍ د دوبندي په سیمه کې په یوه دینداره جهادپاله او مخوره کورنۍ کې زیږیدلی دی، او د ماشومتوب لومړی دوره یې هم همدلته تیره کړې

دشهید والد صاحب د روسي ښکیلاک د یرغل په وړاندې یو غښتلی او پیاوړی قومندان وو او کورنۍ یې ټوله جهاد پروره وه.

شهید جلالي صاحب لا د ځوانۍ په درشل قدم نه وو ایښی چې سرو لښکرو په ګران هیواد یرغل وکړو او ډیری وطنوال یې هجرت ته اړ کړل چې د دوی کورنی هم ګاونډي هیواد پاکستان ته په هجرت کولو مجبور شول او د پاکستان خیبر پختونخواه ایالت د پیښور باغبانانو سیمې کې میشت شول.

### دیني زده کړې

شهید لومړنی ابتدائي زده کړې د سیمې له ملا امام څخه پیل کړې وروسته یې د باغبانانو دارالنجات مدرسې ته مخه کړه اوګڼ کتابونه یې هلته ولوستل منځنی زدکړې یې د هجرت دیار د پیښور د چراټ سیمي د حرکت په مشهوره مدرسه جامعه محمدیه او د نریابو په سیمه کې له مشهور جید عالم مولانا فضل الرحمن پکتیاوال نه ولوستلې دارازیې د مانسهرې مربوط د خاکي کمپ په مدرسه کې له جید او نامتو عالم شهید مولوي محمد خوشال ملنګ څخه اوداسلامي امارت په مهال یې د ننګرهارپه صدیقیه دارالعلوم کې تر سره کړلې، وړه دوره یا موقوفه علیه یې له جید او نامتو عالم شیخ القران والحدیث مولانا محمد ادریس صاحب سره وکړه، لویه دوره یې په جامعه حقانیه کې د وخت له نامتو مشهورو جیدو استادانو څخه وکړه دستار فضیلت پګړی یې هملته وترله اود حدیثو ممتاز درجه سندیې تر لاسه کړلو.

## جهادی خدمت

شهید جلالي چې کله افغانستان د وحشت، بربریت، او ګنو ناخوالو کوربه وو او په مقابل کې یې مخلصو مجاهدینو اوطالبانو د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رح تر مشرۍ لاندې د شر او فساد په مقابل کې د جهاد اعلان وشولو او له زیاتو مدارسو ورسره د دیني مدرسو طالبانو ملتیا وکړه نوموړي د خپل ګران او مشفق استاذ مولوي محمد خوشال ملنګ سره یو ځای د هیواد کندهار ولایت ته هغه مهال سفر وکړواوله دغه پاک لښکرسره ملګری شو کله چې کندهار ښار ته طالبان ورسیدل تر دې چې کابل فتحه شو، د کابل له فتحې وروسته دیوې سختې جګړې په ترڅ کې دکاپیساولایت فتحه شو اومحترم مولوي خوشحال ملنګ داسلامي امارت له لوري والي وټاکل شو،چون مولوي محمدداودجلالي دشهیدملنګ مولوي صاحب نیږدي اومتعمدملګری وو نودهغه دشهادت تروروستی سلګی په ټولوجنګونوکې ورسره اوږه پراوږه ملګری وو

دمولوي خوشحال ملنګ رحمه الله له شهادت وروسته مولوي محمدداود د خپلې ورتیا او لیاقت له وجې د یوتکړه او زړورمشر په توګه را ځرګند شو ، چې په شمالي ړومبیوکرښو ، تخار ، مزارشریف ، دخوست دیعقوبیواودهیوادپه نوروبرخوکې دشراوفسادپه ضد معرکو

کې په داسې حال کې چې دسوونوملګرومشري به یې کوله مهمه ونډه اوبرخه درلوده

د اسلامي امارت له سقوط وروسته کله چې د امریکایانو په مقابل کې افغان ولس د طالبانو تر څنګ ودرید مولوي جلالي له څوهغوکسانو څخه وو چې په لوګرولایت یې دمقاومت مشعلونه بل کړل اودلوګر لایت دطالبانوله نوروميااليونورومشرانوسره په ګډه یې دیادولایت طالبان اومجاهدین دجهاداومبارزي لپاره منسجم اومنظم وګرځول اوداسلام اوهیوادپه غلیمانویې ګوزارونه پیل کړل .

## جهادی مسئولیتونه

شهیدمولوي جلالي په داسې حال کې چې دلوګرولایت دطالبانویونومیالی مشرو داسلامي امارت په پاک صف کې یې ګڼې دندې اومسؤلیتونه سرته رسولي ، چې مهم مسؤلیتونه په لاندې ډول ذکرکولای شو

١ دلوګر دمرکز دکنجک غونډ مشري

٢دلوګر دازري مسؤل

٢ دخوست دیعقوبیوولسوال

٣ دکابل ولایت نظامي مسول اووالي

۴ دنظامي مرکزي کمیسیون غړیتوب ۵دانفجاراتوکمیسیون مسؤل

٦ دهجرت په دیارکې له ګاونډي هیوادسره دارتباطاتومسؤلیت

په دغوټولودندوکې شهیدمولوي محمدداود جلالي دهغه اخلاص اوفداکاریوله وجې چې هغه درلودې الله تعالی په هرمیدان کې کامیاب اوسرلوړی راویستلی خصوصاچې کله دکابل ولایت جهادي چارې ورله غاړې وې همدغه وجه وو چې نوموړي داسلامي امارت په قیادت اومقام کې ځانګړی ځای درلود

## زخمیتوب

شهید جلالي تقبله الله لومړی د کاپیسا ولایت کې هغه مهال زخمي شو کله چې د کاپیسا والي او د ده مشفق استاذ مولوي محمد خوشال ملنګ د اجل داعي ته لبیک ووایه او د شهادت جام یې نوش کړلو چې د دوی په ډاټسن موټر د مخالفینو له لوري دراکټ فیروشو نوموړی سخت زخمي شو هغه ویل کله چې له موټر کښته شوم کوشش مې کولو تر څو ملګرو ته ځان ورسوم یواځې یوه توپانچه راسره وه ومې لیدل چې دوه کسان راپسې منډې راوهي غواړي ماونیسي نویو مې و ویستلو دوهم وتښتیدلوچې روان وم بوټونه مې هم له وینو راډک شول کله چې تر ملګرو ورسیدلو دومره په وینو رنګ وو چې آن خپلو ملګرو هم نه پیژندلو.

ساتلي وو کله يې چې په دوه زره وم کال کې دستاربندي وکړه لومړی يې د افغانستان د پکتيکا ولايت د ښرنې په سيمه کې په يوه مدرسه کې تدريس شروع کړلو وروسته چې کله د طالبانو نظام سقوط وکړلو د پاکستان د مانسهرې د خاکي په کمپ کې د جامعې منهاج العلوم تاسيس وکړو او د يادې مدرسې ډېره يې کيښودله هلته يې د نورو استاذانو تر څنګ درس شروع کړلو تر هغه وروسته يې د پيښور د اضاخيلو په سيمه کې بله مدرسه هم د جامعه منهاج العلوم په نوم اباده او جوړه کړه کله چې نوموړی بندي شو او د اضاخيلو سيمه سيند لاندې کړه ياده مدرسه هم ونړيده خو دريز يې بدل نشو او حوصله يې ماته نکړه له راخوشې کيدلو وروسته يې يو ځل بيا د اکوړې د سورياخيلو په سيمه کې په همدغه نوم مدرسه جوړه کړله چې تر اوسه اباده ده او صدقه جاريه يې روانه ده.

## ځانګړې خاطرې

کله يې هم چاته په تونده لهجه او تيز انداز خبره نده کړې حليم نرم مزاجه خوش طبيعته انسان وو چې تل به يې په شونډو د موسکا سپرلي کېده راوړې وه اودهرچا سره به په موسکا او خندرويه څيره مخ کيدلو تل به يې خپلو ملګرو ته دا توصيه وه چې امارت زمونږ ګډ کور دی د خپل کور د جوړولو هڅه او کوشش وکړی د مشر او کشر خبره واخلئ د مشرانو اطاعت کوی او کشران مو په سمه تربيه برابر کړی هر تکليف برداشت کړی هر څوک چې د امارت له لوري درباندې مقرر شو په سالمه توګه او کلک انداز يې رهبري ومنئ او هرې خبرې ته يې غوږ ونيسئ دغه نظام ته که مونږ وفادار نشو د خپلو زرګونو ملګرو له وينو سره به مو خيانت کړی وي او د حساب په ورځ به د خدای جل جلاله په مخ کې شرمنده ولاړ يو.

## شهادت

مولوي صيب له نظامي چارو سره پوره بلدتيا او په دښمن تاکتيکي بريدونو کې د مشهورتيا سره سره يوه منلې سياسي څيره هم وه چې له همدې امله دښمن غوښتل تر څو هدف يې وګرځوي او له منځه يې يوسي ډېر ځله په خپلو شومو پلانونو کې ناکامه هم شول تر دې چې دوه کاله وړاندې هم له يو بريد نه په ټپي حالت کې ژوندی و وتلو او بالاخره د (۲۷/۴/۲۰۱۷) تاريخ باندې د جمعې په شپه د دښمن له لوري له يو ناځوانمردانه بريد سره مخ شو چې له خپلو دو ملګرو مولوي محمد رحيم خاکسار تقبله الله او اشرف الله تقبله الله سره يې يو ځای د ۴۵ کلنۍ په عمر کې اسلامي جهادي او وياړمن ژوند دعمر ډيوه خاموشه شوه او د اجل داعي ته يې لبيک وويلو.

روح دې ښاد او ياد دې تل وي

انا لله و انا اليه راجعون

دوهم ځل چې کله د تخار ولايت د فرخار په سيمه کې د لته بند په سر جګړه ونښتله او د خط عمومي مسئول ملا شهزاده اخند تقبله الله وو او د دوی د لوري او اړخ مسئول مولوی محمد داود جلالي وو سخت زخمي شو

دريم ځل کله چې نوموړی د مشرقي حلقې مسئول وو د پيښور د حکيم اباد په سيمه کې د هيواد او دين د دښمنانو له لوري په يو ناځوانمردانه بريد کې زخمي شو چې د د ستار بندي جلسې ته به لار وو په خپل موټر کې يې تر بريد لاندې راغلو دغو تولو بريدونو يې حوصله ماته نکړه بلکې نور تاند او تکړه شو عزم او حوصله يې غښتلې شوه مقاومت ته يې نوره هم ملا ورکړه او خپله مبارزه يې روانه وساتله.

## اسارت

کله چې نوموړی د کابل ولايت جهادي مسئول وو د ۲۰۱۰ کال د ۱۰ مياشتې په ۱۵ تاريخ د پنج شنبې په ورځ د اضاخيلو په سيمه کې دپاکستان پټواداروله لوري ونيول شوچې د ۱۶/۱۱/۲۰۱۲ تاريخ پورې ورسره اسيروو له خلاصيدووروسته يې بيرته د جهاد او مقاومت ډګر ته ودانګل.

## علمي هڅې او بوختياوې

نوموړي له جهادي خدماتو سره سره علمي خدمت ته هم نه وه شاکړې بلکې هر وخت به يې دواړه ډګره منبر او سنګر ګرم

# دشهید مولوی لعل محمد محمدي

## جهادي او تاریخي پس منظر

شـهید مولـوی لعـل محمـد محمـدی دبغـلان ولایـت د پلخمـري ولسـوالۍ اړونـد ډنډغوری سیمې جوی ناوه کلي دامیرمحمد پـه یوه شـهید پالـه اودینـداره کورنۍ کې دې فـاني نـړۍ ته سترګې غړولې وې، نـوم وړی شهید دنیکو اخلاقـو اوښـکلې خـیرې ښـتن، دټینګ اوقوي عزم خاونـد، دځـانګړې تقـوا، اخـلاص، غـیرت، الفـت، مینـې اوعاطفې درلودونکي وه.

دشـهیدمولوی لعـل محمـــــد محمـــــدي دماشومتوب دوره چې کلـه پـای تـه ورسـیده دهغه متدین پلار امیرمحمد شهید مولوی لعـل پـه یـوه دینـي مدرسـه کـې شـامل کـړ، چـې بالاخره د دستار فضیلت ورپه برخـه شـو، لکـه څنګه چې جهاد زموږ یوه اهمـه فریضـه ده او داشـغال کـړی هـم زموږپـه ګـران هیـواد کـې دوامـداره شـوه نوپـه هغـه وخـت کـې بهـرني اشغالګر اودهغوی مرتزقه ګوډاګیان دچـاپو پـه مهال ډنډغوری ته راتلـل ، شـهید مولـوی لعـل هـم دجهـاد سـنګرته راتلـل اړیـن وبلـل اولـه همدغه ځایه یې خپله جهادي مبارزه پیل کړه، نومـوړي شـهید دیـو فـرد مجاهـد پـه حیـث دښکیلاکګرو په مقابل کې ودرید، لکـه څرنګـه چې دبرتریو معیار الله ج یـوازې تقـوا ښـودلې نوشـهید مولـوی لعـل هـم دځـانګړې تقـوا اواخلاص درلودو نکـی وه اود همـدې تقـوا لـه وجهـې د ډلګـي دمشرـتوب مسـولیت ورپـه غاړشو، ده هم په پوره میړانه اوشـجاعت سره دا مسولیت ادا کړ، شهید مولـوی لعـل یـو ښـه تنظیمـونکی، تکـړه رهـبر، سـالار، مـدبر، جیـد عالم، په پوهه سـمبال اوسر خـلاصی شخصـیت وه؛ شهید مولوی لعل هغه څوک وه چې د ده پـه مشرـۍ اورهـبرۍ کـې دډنـډغوری ډیـرې سـیمې فتحـه شـوې، کلـه چـې دامـارت درنـو مشرـانو د شـهید مولـوی لعـل درهـبرۍ وړتیـا ولیدله نـو سـم دستـی یـې دولسـوالۍ درونـد مسولیت ورپه غاړ کړ، چې هغه مسولیت یـې هم ځو برابره ښـه ادا کـړ .شـهید مولـوی لعـل دمجاهدینو په صفوفو کې شـفافیت، وحـدت، عدالت، اوله اولسونو سره دښو اړیکـو روحیـه رامنځ ته کړه .شهید مولـوی لعـل دولایـت پـه ټولو ولسـوالیو کـې مجاهـدین حمایـه کـړل، د دښـمن شـوم پلانونـه یـې شـنډکړل، دوخـت هرغـدار اوزورواکـي تـه یـې غـاښ مـاتونکی ځواب ورکړ، ددښمن په لیکو کـې یـې نفـوذي مجاهـدین وروزل پـه کـال۱۳۹٤ کـې یـې پـه ډنـډغوری کـې ددښـمن لـه مرکـزی اوولایتـي قـواوو سره څلویښـت ورځـې مقابلـه وکـړه، دبغلان د دهنـه غـوری ولسـوالۍ هـم دې ده دمدیریت په دوره کـې دسـپین محمـدي بـیرغ لاندې راغلـه همدارنګـه ددښـمن غـټ او واړه مرکزونه یې پـه بشـپړه توګـه ونیـول کلـه چـې کنـدز لـومړی ځـل فتحـه شـو نـو پـه خـورا تدبیرسره یې د دښمن دهغې لـوی قـوی مخـه ډب کړه چې غوښتل یـې پـه کنـدز کـې خپلـو وارخطا عسکرو ته مرسـته ورسـوي، همـدا راز کله چې کندز د دویم ځل لپاره هم فتحه شـو دشهیدمولوی لعل سرسپارلو مجاهدینو دبغلان اوکنـدز پـه لویـه لارکـې کنـدز تـه د دښـمن تلونکي اکمالاتي کاروان د څلویښتو لویـو اوړو موټرونوسره داور په لمبو کې لاهو کـړ، داولـس ځانګړې همکاری شهید مولـوی لعـل تـه نـوره بریا هم ورپه برخـه کـړه .دهمـدې سرښـندنې اوتکړه مدیریت په نتیجـه کـې دمرسـتیال والي په توګـه اولـه لنـډې مـودې وروسـته د بغـلان دعمومي جهادي مسئول یعني دوالي پـه توګـه وټاکل شو. شهید مولوی لعل دولایت پـه دوره کې هم ډیرې لاسته راوړنې درلودې، څه موده وړاندې یې د دښمن هغه قوه چې غوښتل یې د دهنې غوري ولسـوالۍ د بیرتـه نیولـو لپـاره عملیـات وکـړي، دړې وړې کـړه هـان پـه سره ژمـي او یخنـي کـې یـې د تالاوبرفـک ولسـوالۍ او د کیهان سره دره ترې ونیـول او دښمن یې پـه خپلـو عملیـاتو پیښیمانه کړ.

دښې مشرۍ له وجهې یـې دهروګـړي، غټـو اوړو، مجاهیـدینو، اوعـامو متـدینو مسـلمانانو، پـه زړونـو کـې خاص ځای درلوده

بلاخره په ۳۰/۱/۱۳۹٦ هـ ش کال کې د ډنډغوري جـوی نـاو پـه کـلی کـې دصـلیبې اشـغالګرو اوګوډاګیـانو پـه بې رحمانه بمباری کې دشهادت سپیڅلي او عظـیم مقام ته ورسید.

انالله وانااليه راجعون

یقنًا شهیده مشره! ستا شهادت دبغـلان دځوریـدلي اولـس او داسـلام سرسـپارلو مجاهدینو لپاره یوه ستره ضایعه ده، خوله بلـه پلوه شهادت دالله ج لخوا داسې یوه تحفـه ده چـې الله ج یـې پـه خپلـو خاصـو او مخلصـو بندګانو لوروي، شهادت زموږ دژونـد ریښـتیني هدف دی چې موږ ددې هدف دلاسته راوړلـو لپـاره سـختۍ کـړاو اوهرڅـه زغمـلي؛ سـتا دامعصومې ویني به نور مجاهدین راوټوکـوي، دا دالله تعالي دین دی الله تعالی یې سـاتي، مـوږ دمشرانو په شهادت نه خفه کیږو بلکـې ویـاړو او افتخار پرې کوو، الله تعـالی دې دشـهید امـیر ستر، رهبر مولوی لعل محمد محمدی شـهادت قبول کړي کورنیو اواړوندانوته یې له الله تعـالی صبر او اجر عظیم غواړم رب تعالي دې موږ تـه همـدا شـان لـه اخلاصـه ډک متـدین، حقپـال، عدالت پال، مدبر، اونیک نور مشران هـم راپـه برخه کړي.

امین یاربّ العلمیـــــن

# قاضی شفیع الدین حارث

عبید امارتي

شهادت مبارک مرد قلم و مجاهد سنگر شفیع الدین حارث آراسته با عقاید محکم ، ایمان قوی، اخلاق نیکو ، جوان متقی ، پرهیزگار ، دلاور ، شجاع و سنگر دارا جهاد و مبارزه ، سمبول استقامت، پایداری ، صبر و بردباری بود . شهید شفیع الدین حارث رفیق ، برادر ، همسنگر ، همراز و هم صحبت که دوره تحصیلی را یکجا سپری نموده و خاطراتی از شب های سنگر داری و فعالیت های جهادی با هم داشتیم .

هرچه در وصف حارث بنویسم کم است او را مثل برادر بلکه بهتر و صمیمی تر از برادر میدانستم ، از شجاعت ها و شهامت های آن هرچه بنویسم کم است . شفیع الدین جهاد مسلحانه را یگانه راه فلاح و رستگاری میدانست و همواره تاکید به ادامه آن داشت ، با جوانان و خصوصا محصلین روابط نهایت دوستانه داشته و برای جلوی گیری از افکار غربی و نظریات پوچ دموکراسی شب و روز مبارزه می نمود و در این راه احساس ماندگی و خسته گی نمیکرد ، دوره تحصیلی حارث فرصتی برای فعالیت های فکری و فرهنگی وی بود، تا اندازه ای در این راه قدم های محکم برمیداشت که اکثر محصلین وی را نماینده امارت اسلامی در پوهنتون میدانستند .

در پهلوی جهاد نظامی ، سال قبل مسولیت تعلیم و تربیه و فعالا مسولیت فرهنگی مرکز را نیز بر عهده داشت ، که کارنامه های آن برای همگان هویداست . همیش از شهادت در راه الله حرف می زد و برای کسب درجه والای شهادت می‌کوشید، دعا می نمود و از همسنگران خود دعا می خواست تا در این راه خونش بریزد و شهید شود . قاضی شفیع الدین حارث در یک خانواده مجاهد پرور ، قریه داوود خیل ، مرکز پل علم ، ولایت لوگر دیده به جهان هستی کشود . و در سال ۱۳۹۳ ه ش از پوهنځی شرعیات ، پوهنتون ننگرهار به درجه کدری فارغ گردید .

#شهادت صبح روز چهارشنبه ۶ ثور قوای اشغالگر صلیبی با اجیران شان به بهانه عملیات تصفیوی بسوی ساحه زیر کنترول مجاهدین ( قلعه الیاس خان ، مرکز لوگر ) در حرکت شدند ، در اول روز قاضی حارث و همسنگرانش به بسیار شجاعت و مردانگی رزمیدند، قدم به قدم پیشروی نموده و دشمن مجبور به عقب نشینی و فرار گردید ، در حین جنگ طیاره بی پیلوت مجاهدین را هدف قرار داد که در نتیجه یک مجاهد شهید و دو تن دیگر زخم برداشتند حارث دوان دوان بطرف جای رفت که طیاره بم پرتاب نموده بود تا از میدان جنگ شهید و زخمی ها را انتقال دهد که درون حمله دوم را انجام داد ، آه ...

این حمله ای بود که حارث را به آرزو هایش رساند. حارث بشهادت رسید ، به آرمان خود رسید، به هدف خود رسید ، روح حارث در جاغور پرنده های سبز بهشتی قرار گرفت ، خندید و جان را به جانان آفرین سپرد . ۶/۲/۱۴۹۶ هش.

اللهم تقبل شهادته وجعل الجنة الفردوس مثواه.

**د شهید حارث تقبله الله هغه شعر چې د ژوند په وروستیو ورځو کې یې د شهادت په مینه جوړ کړی و:**

راشه پروت پاس په ګړنګ یمه شهید یم
سور په وینو باندې رنګ یمه شهید یم

دې کافرو په ناترسه ګذارونو
دنګ چنار وم اوس ړنګ بنګ یمه شهید یم

دې بستر آرام خوبونه مې خوښ نه دي
خوښ یم پروت چې بې پلنګ یمه شهید یم

زه دې پاکې شمعې داسې لاروی یم
نن په اور سوی پتنګ یمه شهید یم

سوی سکور یم دې بارودو په لمبو کې
خاص او خاص لکه لونګ یمه شهید یم

تل مې سره اورونه بل دي په غربیانو
د خالد دې توري شرنګ یمه شهید یم

سر ببر او ایبلې پښې روان سنګر ته
ځم په لار لکه ملنګ یمه شهید یم

دې دوښمن ګذار ته مخامخ ولاړ یم
داسې نه چې تري په څنګ یمه شهید یم

په مظلومو باندې رحم دې الله یم
په ظالمو کړم غورځنګ یمه شهید یم

جنازه مې فرشتو په اوږو بار کړه
ځکه ځار دې دین په ننګ یمه شهید یم

دې سورکو مرمو باران رباندې اوري
دې غلیم سره په جنګ یمه شهید یم

زه «حارث» درنه رخصت اخلم ملګرو
ځم له دې جهانه تنګ یمه شهید یم



# د شمالي کوريا

## نوې توغندويي ازموينه به څه پايلې ولري؟

حسن مومند

تېره اوونۍ شمالي کوريا يوه بله توغندوي ازموينه وکړه چې کاميابه نه شوه او دتوغول کېدونه دوه دقيقې پس توغول شوی توغندی په فضا کې ټوټه ټوټه او دجاپان بحيرې کې راپرېوتلو.

تراوسه دا نه ده روښانه شوې چې دا توغندی څومره پورته تللی و؛ څومره واټن يې وهلی و او هدف يې څه و خو دا خبره معلومه ده چې دڅه مودې راهيسې شمالي کوريا لګيا ده د داسې توغندو دتيارولو هڅې کوي چې له ځانه سره اتومي مواد انتقال او دامريکا لويه وچه په نښه کړای شي.

شمالي کوريا پدې کې څومره بريالیتوب ترلاسه کړی او دامريکا دويشتلو داستعداد حاصلولو څومره پړاوو نه به يې وهلي وي؟ پدې اړه څوک دقيقه خبره نشي کولای خو داخبره يقيني ده چې شمالي کوريا دخپل هدف دحصول لپاره لګيا ده په پوره جرأت خپل کار مخ په وړاندې بوځي او پدې لار کې دامريکا په شمول دهيچا پروا نه ساتي.

امريکا اوس هسې هم دډېروزياتومشکلاتوښکارده خو ډونلډټرمپ دراتلو نه پس امريکا دډېرو زياتو کورنو ستونزو سره مخامخ شو يده؛ دامريکا نړيوال مقام ساتل هم يوه ستونزه ده ولس ته طبي اسانتياوې او کاروکول بله ستونزه ده او دبهر نړۍ نه امريکا ته دراغلو سونوزرو کډوالو دمشکلاتو حل يو ځانته لوی مشکل دی؛دکورنيو ستونزو ترڅنګ امريکا او سمهال په افغانستان،عراق، شام او په جزوي ډول ځينو نورو ځايونو کې په جنګ کې اخته ده نو په داسې حالت کې ورته دشمالي کوريا پرضد اقدام کول اسان کار ندی نو پدې اړه يې تشويش پرځای دی .

دشمالي کوريا داوسنۍ توغندويي ازموينې اهميت له دې امله زيات دی چې دا په داسې وخت کې رامنځته شوه چې دملګرو ملتونو په امنيت شورا کې دشمالي کوريا داتومي وسلو دېراختيا دمخنيوي لپاره غونډه روانه وه .

هو! په ښکاره امريکا دشمالي کوريا داتومي پروګرام دستونزې دحل په لار کې ديپلوماتيکو هلو ځلو ته ترجيح ورکوي چې دملګرو ملتونو په امنيت شورا کې روانه داغونډه هم دهمدې هدف لپاره وه.

دوزيرانو په سويه ددې غونډې مشرې چې دامريکا دولسمشر سيکرتر ريکس ټلرسن کوله نو لادمخه ورسره شمالي کوريا خپل پريکون اعلان کړی و.

سره له دې چې دملګرو ملتونو دادارې له لورې دشمالي کوريا په اتومي پروګرام بندېز لګېدلی دی او په سختۍ يې دخپل اتومي پروګرام دجارې ساتلو نه منع کړيده خو شمالي کوريا ددې بندېز څه پروا نده لرلې ؛ که څه هم ورباندې ګڼ اقتصادي بندېزونه لګېدلي دي خو بيايې هم سرندی ټيټ کړی او په مسلسل ډول دداسې توغندو جوړولو په هڅو کې ده چې امريکا پرې په نښه کړای شي.

دکوريا د دې ازموينې نه پس دامريکا يوه سمندري جنګي بېړۍ دکوريا سمندر ته ورو ورو ورنېږدې کېږي ؛ امريکا وايي چې په مناسب وخت کې شمالي کوريا ته ددرس ورکولو لپاره ددې بېړۍ شتون اړين دی.

دامريکا اوسني ولسمشر- ډونلډټرمپ شمالي کوريا ته اخطار ورکړيدی او له چين نه يې غوښتي دي چې ددې ستونزې دحل لپاره دې دخپل نفوذ نه کار واخلي.

امريکايي پوهان پدې خبرې متيقن دي چې شمالي کوريا په مسلسل ډول خپل اتومي پروګرام ته دېراختيا ورکولو په هڅو کې ده او غواړي چې داسې اتومي توغندي جوړ کړي چې امريکا پرې په نښه کړای شي؛ امريکايي پوهان پدې هم متفق دي چې امريکا د هوايي او توغندويي بريدونو له لارې دشمالي کوريا دتوغندو جوړولوصلاحيت له منځه وړای شي خو دابه دخپل پروګرام نه دشمالي کوريا دراګرځولو ترټولو وروستی هغه اقدام وي چې دډېرې سختې اړتيا په صورت کې به پورته کېږي.

امريکا چې دشمالي کوريا دستونزې دحل په لار کې دچين نه دمرستې غوښتنه کړيده داددې خبرې روښانه دليل دی چې امريکا په اوسنو حالاتو او شرايطو کې نه

غواړي چې ځان دشمالي کوريا سره په جنګ کې اخته کړي ځکه چې دعراق او افغانستان په اوږدو جنګونو کې لويو ناکاميو اوس دامريکا نظامي او سياسي مقام ته ډېر لوي تاوان رسولی دی.

که په غور وکتل شي نو ددوهم نړيوال جنګ نه پس شمالي کوريا دلويديځ او په ځانګړې ډول دامريکا لپاره په يو لوی درد سر بدل شويدی؛ لکه دويتنام جنګ چې دامريکا دتاريخ يو تور باب دی همدارنګه دکوريا جنګ هم دامريکا يوه دغم نه ډکه ماضي ده؛ دامريکايانو سره دهمدې غمجنې ماضي دبيا تکرارېدو وېره ده نو ځکه هڅه کوي چې دکوريا سره دجنګ کولو نه ځان وساتي.

ددوهم نړيوال جنګ نه وړاندې پرکوريا دجاپانيانو قبضه وه؛ په جنګ کې دجاپان دشکست په نتيجه کې کوريا دجاپان دقبضې نه ووتله او روسي او امريکا په شمالي او جنوبي دوه برخو وويشله؛شمالي برخه يې دروسي دنفوذ سيمه شوه او جنوبي برخه يې دامريکا تراثر لاندې راغله.

دا تقسيم داسې و لکه په همدې دوهم نړيوال جنګ کې چې جرمني په ختيځ او لويديځ دوه برخو وويشل شو؛شرقي جرمني دروسي اوغربي جرمني دامريکا دنفوذ سيمې وګرځېدلې.

ددوهم نړيوال جنګ په نتيجه کې دکوريا دا ويش شمالي کوريا ته دمنلو وړ نه و نوځکه يې په ۱۹۵۰ م کې جنوبي کوريا ته خپل فوځونه ورننويستي وو او دکوريا جنګ پيل شوی و.

هو ! دا د۱۹۵۰م کال دجون مياشتې ۲۵ مه نېټه وه ؛ دشمالي کوريا ۷۵ زره مسلح فوځونه جنوبي کوريا ته ورننوتل او دجنوبي کوريا پرضد يې جنګ پيل کړ؛ دشمالي کوريا ترشا کمونستي روسيه وه او لويديځ ټول دجنوبي کوريا ترڅنګ ولاړ و.

ددوهم نړيوال جنګ نه پس دسوړ جنګ په زماني کې داړومبی عسکري معرکه وه؛امريکا دا داشتراکي فوځ حمله وګڼله نو سمدستي يې پکې دګډون پرېکړه وکړه ځکه چې دشمالي کوريا دحملې سره دجنوبي کوريا دماتې خوړلو نښې راښکاره شوې وې؛ دجنګ دپيل کېدو دهماغې اولې ورځې نه امريکا دجنګ بندی غوښتونکی وه خوپرې نه وه توانېدلې دې جنګ ۳ کلونه دوام وکړ چې پکې له دواړو لورو ۵ ميليونه ولسې وګړو او فوځيانو خپل ژوند له لاسه ورکړی و.

په ۱۹۵۳ م کې اور بند وشو خو ورسره يوځای کوريا په کمونستي شمالي کوريا او لويديځ پلوې جنوبي کوريا دوه برخو وويشل شوه.

امريکا ددې خبرې نه په سختې وېرې کې وه چې که جنګ اوږد شي نو شايد چې امريکا دروسي او چينياني فوځونو سره په مخامخ جنګ کې اخته شي چې دا به ددريم نړيوال جنګ درامنځته کېدو سبب شي؛ ددريم نړيوال جنګ رامنځته کېدو ته لويديځ بيخي نه و تيار نو ځکه يې ددې جنګ دپيل کېدو سره سم دبنديدو لپاره هڅې کولې.

سره له دې چې دجنګ په اړه دکمونستي چين او روسي فکر ډېر روښانه نه و ځکه چې دفکر معلومولو وسايل او اسباب نه وو خو دا خبره ښه روښانه وه چې دادواړه ځواکونه دشمالي کوريا ترشا ولاړ وو او په هر حالت کې يې دشمالي کوريا غلبه غوښتله.

دامريکا دملي امنيت دشورې له لورې د ۱۹۵۰ م کال داپريل مياشت په خپور شوي (N.C.S.٦٨) راپور کې راغلي و چې امريکا به په هر هغه ځای کې خپل فوځي ځواک وکاروي چې پکې کمونيستي ځواک دقدم ايښودلو هڅې کوي؛که څه هم هغه ځای په سياسي او اقتصادي لحاظ مهم نه وي بيا به يې هم موږ کمونستانو ته پرې نږدو.

دهغه مهال دامريکا ولسمشر- هيری ټرومين ويلي و چې جنوبي کوريا له لاسه ورکول داسې دي لکه کمونزم ته ديوې نه پس پربلې سيمې دقبضې ورکولو لار پرانستل وي؛ دکوريا جنګ بايد دلويديځ او کمونيزم،نيک او بد جنګ وګڼل شي.

شمالي کوريا فوځونو چې دجنوبي کوريا پلازمينه سيول ونيوله او دجنوبي کوريا ماتې يقيني شوه نو امريکا او نور لويديځوال اتحاديان يې دګر ته راووتل؛په پيل کې داتحادي فوځونو هدف دفاعي و ياني دسيول نه دشمالي کوريا دفوځونو ويستل خو دا چې دشمالي کوريا فوځونه ډېر منظم وو؛په ډېرو ښو وسلو سمبال وو او دفتحې دقوي هوډ سره يې داحمله کړې وه نو په اسانه شاته کېدونکي نه وو.

خو په مقابل کې يې اتحادي فوځونه دپوره تياري سره نه وو راغلي؛موسم هم سخت ګرم او خشک و او اتحادي فوځونه دڅښاک داوبو دسخت کمښت سره مخامخ وو.

ډېر ځلې هغوئ دشولو په فصل کې ولاړ و هغو اوبو څښلو ته هم اړ شوي و چې انساني فضله مواد به پکې موجود وو چې له امله يې دخېټې دمرضونو ښکار شوي هم وو.

اتحادي فوځونه هر وخت دجنګ دډګر نه تېښتې ته تيار ناست وو،دګرمی په تېرېدودامريکا ولسمشر- هيری ټرومين او دسيمې دجنګي چارو مسئول امريکايي جنرال وکلس ميک آرتر نوې جنګي پاليسي ترتيب کړه چې له مخې يې دکوريا جنګ پرلويديځ حمله وګڼل شوه او جنوبي کوريا ازادول دلويديځ لپاره هدف وبلل شو.




نويو تازه دمو راغلو اتحادي فوځونو دشمالي کوريا دفوځونو په ويستلو او دجنوبي کوريا په ازادولو وتوانېدل خو چې اتحادي فوځونه دشمالي کوريا فوځونو پسې دسرحد نه ورپورې وتل او ديالوسيند ته يې حرکت وکړ نو دامريکايي او چينايي فوځيانو دمخامخ کېدو خطر رامخې ته شو ځکه چې ديالو سيند دشمالي کوريا او چين ترمنځ سرحد و.

چين دامريکا دحملې نه دځان ساتنې لپاره جدي اقدامات وکړل ؛ دخپلو سرحداتو دساتنې لپاره يې خپل يو شمېر فوځيان شمالي کوريا ته واستول او دچين مشر ماوزي تنګ امريکا ته اخطار ورکړ چې دچين دسرحداتو نه دې ځان لرې وساتي ګينې جنګ ته دې ځان تيار کړي.

دچين ددې اخطار نه پس داتحادي فوځونو پرمختګ ودرېد؛امريکا دوراندې تګ پرځای داور بندۍ او سولې په هيله بېرته ستنېدل غوره کړل؛د۱۹۵۳ م دجولای په۲۷ مې نېټې دداوړو اړخونو ترمنځ دسولې تړون رامنځته شو او دداوړو کورياګانو فوځونه خپلو هماغو سرحدونو ته ولاړل کوم چې ورته په ۱۹۴۵ م کې ټاکل شوي وو؛جنوبي کوريا ته کابو ۲زره مربع کيلومتره زياته ځمکه ورکړل شوه او دداوړو کورياګانو ترمنځ درې کيلو متره خالي اوږده کرښه پرېښودل شوه چې ترننه لاشتون لري.

دا جنګ نسبتاً لنډ و خو ډېر خونړی و چې پکې دداوړو اړخونو نه ۵۰۰ سوه زرو (پنځه لکو)تنانو خپل ژوند له لاسه ورکړ په دوئ کې دنيم نه زيات ولسي وګړي وو ؛ ياني دکوريا پدې جنګ کې دوژل شويوتنانو شمېره په دوهم نړيوال جنګ کې دوژل شويو تنانو نه زياته وه ؛ پدې جنګ کې دکوريا۱۰ سلنه ودانۍ هم له منځه تللې وې.

پدې جنګ کې دوژل شويوامريکايې فوځيانو شمېر ۴۰ زرو ته رسېدلو اوټپيان شوي امريکايان ۱۰۰ زره وو نوځکه دامريکاپه پاليسي جوړونکو دې جنګ بدې اغېزې کړی وې چې دا بدې اغېزې تر ننه هم په امريکايانوکې محسوسېږي .

شمالي کوريا جنګ بندۍ ته چمتوشوه خو دجنګ بندۍ نه تر ننه شمالي کوريا دخپل عسکري ځواک په تقويه کولوکې مصروفه ده ؛ امريکا اوټول لويديځ دشمالي کوريا ددې هڅوسره تل خپل سخت مخالفت ښکاره کړيدی اوپه ډېرې سختۍ يې ددې هڅونه منع کړيده خوشمالي کوريا نه يواځې دا چې د دوئ د خبرو پروا يې نده لرلې بلکې دامريکا اولويديځ غصه کونکي اوراپارونکي اقدامات يې هم کړيدي اوکله نا کله يې ورته اخطارونه هم ورکړيدي خوداچې شمالي کوريا کوم اسلامي هېواد ندی نو امريکا يې پر ضد تر اوسه کوم نظامي اقدام ندی کړی ؛ بس په سياسي ډګر کې دتجريد او اقتصادي ګنو بنديزونوله لارې دکمزوري کولو پاليسي- يې مخ په وړاندې بوتللې ده .

دنړۍ حالاتو ته چې نظر وشي نوښکاري چې هرڅه ډېر بدل شويدي ؛ په ګنو جنګي ډګرونو کې دښکېلتيا له امله دامريکا اقتصاد ته ډېر تاوان اوښتی دی ؛ همداراز پر نړۍ يې چې کوم رعب او اوپه نړۍ کې يې چې کوم مقام و هغه ببخي له منځه تللی دی .

په ۹۰ يمې لسيزې کې دشوروي اتحاد دماتېدونه پس چې امريکا پرټولې نړۍ دخپل حاکميت اوقبضې کوم پلانونه جوړ کړي ووهغه هم دسختې ناکامۍ سره مخامخ شويدي .

په نړيواله سطحه دچين تېز پرمختګ په ټولونړيوالو موضوعاتو کې چين ته دمداخلې موکه ورکړيده .

روسيه هم اوس ديواځيتوب دحالت نه راوتلی ده ؛ دټول منځني ختيځ اوپه ځانګړی ډول دشام په ستونزې کې روسې خپل وجود ثابت کړ ؛ روسې منځنی ختيځ بيا دخپل نفوذ سيمه ګرځولی ده او جنوبي اسيا ته يې هم خپل لاسونه را اوږده کړيدي اودچين او ځينو نوروهېوادونو سره يوځای دخپل نفوذ دزياتولوهڅې کوي .

داهم مهمه ده چې دشمالي کورياتو غندويي ازموينه دجنوبي کوريا اوجاپان دګواښلو لپاره ده ، نه دامريکا دګواښلو لپاره ؛ دايقيني نده چې دشمالي کوريا توغندويې ټيکنالوجي دې دومره پياوړی شوی وي يا دې په نېږدې راتلونکې کې دومره پياوړی شي چې امريکا په نښه کړای شي ؛ اوکه دا توان ولري نوبيا داسی نده چې خامخا به شمالي کوريا پر امريکا دحملې کولو هوډ ولري اويا دې امريکا دخپل ځان نه ددفاع توان ونه لري .

نو دې ټولوخبرو ته په پام سره سمدستي دامريکا اوشمالي کوريا ترمنځ دجنګ رامنځته کېدو کوم جدي ګواښ نه ترسترګوکېږي .

ترټولو مهمه دا ده چې شمالي کوريا کوم اسلامي هېواد ندی چې دتباه کولو لپاره دې يې امريکا هسې پلمې ولټوي اوخپل ځان دجنګ دسترو تاوانونو سره مخامخ کړي نوترکومه چې کېدای شي امريکابه دجنګ نه ځان ساتي اويواځې هغه مهال به فوځي اقدام کوي چې ترې چاره نه وي .

# د سنګر او د دفتر طالب ته يو څو سپارښتنې

ليکوال : ابومحمد (رحماني)

طالب جانه ته هغه د ډېرش کاله مخکې زمانې طالب نه يې چې يـواځې بـه دې له حجرې مسجد او کتـاب سره کـار وو .

هېوادوال او نړيوال ستا له نـوم سره ناشنا وو تـه چانـه پېژنـدې يـواځې خپلـو دوستانو او قريبانو تـه پېژنـدې تـا تـه پـه ټولنـه کـې د يـو وروستـه پاتـه قشر۔ پـه سترګه کتـل کېدل ستا پـه اړه د عـامو خلکو ګومان داوو چې طالب پـه پـردې ډوډۍ لوی شوی انسان ده چې يـواځې د دين په مسائلو پوهېږي او بس. ستا او د پوهنتون دمحصل تر منځ ډېر لـوی واټـن وو هغه ته به په کورنۍ او چاپيريـال کـې خلک په ډېر احترام قائل وو. د والـدينو او د کورنۍ د نورو غړوله خوا به هم ورته په درنه سترګه کتل کېدل .

په هغـه بـه يـې د تعليم پـه دوران کې پـوره مصارف کـول تـر څـو لـه هغـه څخه په راتلـونکې کـې ډاکتـر يـا انجينـر يامعلم يا يو بل داسې بااستعداده ځـوان جوړ شي چې خپلې کـورنۍ او ټـولنې تـه خدمت وکړي .

خو طالبه هغه وخـت بـه لـه تـاسره مدرسې ته د تللو لپاره کرايه هـم نـه وه ، پـه مدرسـه کـې بـه دې د خپلـو جـامو د اينځلو لپاه د صابون پسې هم نه درلـودې د مريضۍ پر وخت به دې د سمې درملنې معـاينې پـه ځـای يـواځې دپراستـامول پـه ګوليـو خپـل علاج کاوه. او داځکه چې په طالب پورې دهيچا د راتلونکې هيلې نه وې تړلې. حتی ځينې له ديـن نه لرې خلکو به په طالب ملنډې وهلې او په ډېر سپک نظر به يې ورته کتل.

له طالب څخه هېچا هم دومره لويه هيله نه لرله چې دی به يو وخـت ټـول هېـواد او ملـت لـه ظلم او وحشت څخه وژغوري . خو کله مو چې هېواد له سرو لښکرو څخـه خـلاص شـو مجاهـدين واک ته ورسېدل د دې په ځـای چـې د شـهېدانو ارمانونـه پـوره شي د يـو سپېڅلي اسلامي نظـام ځښتنان شو برعکس مو هېواد يو ځل بيا د داخلي جنګونو په ډګر بدل شو د هېواد پـه هـېڅ ځـای کې د هېچا سر، مال، ناموس، خوندي نه وو. هېوادوال مو له ژونـد څخـه نـاهيلي شـوي وو هيچـا دا فکر نه کاوه چې داسې يو ځوک به پيدا شي چې په هېواد کې د روان وحشت ټغر ټول کړي .

طالب ته تر دې وخته خلکو پّه هماغه نظر کتل ځکه نو د چا پـه فکـر کـې دا نـه راتلـل چـې طالب دې هېواد له روان ناورين څخه خلاص کړي د خلکو د توقع خلاف د ملامحمد عمـر مجاهـد (رحمه الله ) په مشرۍ يو څو تنو طالبانو چې په مدرسه کې يې ديني زده کړې کولې د روان فساد او وحشت په ضد غبر او چت کړ هماغه وو چې د دوی د غه آواز د زوربدلي ملت له خوا له تود هـر کلي سره مخ شو او په ډېر کم وخت کې د هېواد له نـوې سـلنې څخـه لـه زيـاتې ځمکـې د ظلـم او وحشت ټغر ټول شو ا وپه ځای يې يو سپېڅلی اسلامي نظام حاکم شو .

طالب سنګر، محراب ، ممبر ، مدرسه ،کتاب ، دفتر ، قضاء، رياست ، وزارت دا ټـول پـه سـمه توګه وپالل. طالب د هغو زرګونو او لکونو شهېدانو ارمانونه پوره کړل چې د اسـلامي نظـام پـه هيلـه يې سرونه ورکړي وو .

د يتيمانو په سرونو يې د شفقت لاس راکش کړ د شهيدانو قاتلانو ته يې سزاء ورکـړه شرعـي حدود يې جاري کړل . هېوادوالو مو له سختو وحشتو څخه وروسته پـه آرام سـاه واخستـه . کفـري نړۍ د غه نظام ونه شو زغملی په مختلفو بهانو يې د دې نظام د پرځولو لپاره هلې ځلې پيـل کـړې تردې چې زمونږ په ګران هېواد يې يرغل وکړ.

طالب له هماغې ورځې تر ننه پورې د کفري لښکرو په وړاندې په ډېره مېړانـه مقابلـه وکـړه . نن نه يواځې هيوادوال بلکې ټول نړيوال د طالب له نوم سره آشنا شول د طالـب د فکـر ، عقېـدې او تګلارې په اړه يې پلټنې شروع کړې.

له هغه پرمختللي او په اټونمي وسلو سمبال فوج سره مقابله وکړه. د الله تعالی په کامل نصرت دېځ  فتوحات اوغنیمتونه دې حاصل کړل .

د گران هېواد زیاته برخه دې د اشغالگرو او د هغوی دغلامانو له شتون څخه پاکه کړه .

نو اې د سنگر ، مدرسې ، او دفتر طالبه گوره چې د دې لښکر سالار امیر المؤمنین (رحمه الله) او بیا دهغه ځای ناستی شهید ملااختر محمد منصور (رحمه الله) هېر نه کړې هغوی په دعاگانو کې یادوه دهغوی مسیر تعقیب کړه.

گوره چې مغرور نه شې شهیدان هېر نه کړې د هغوی له ارمانونو سره جفاء ونه کړې د هغوی له وینو سره خیانت ونه کړې .

د تل لپاره امارت ته وفاء دار اوسه . دا دزرگونو طالبانو عالمانو او حافظانو په وینو خړوب شوی کور ده .  د دې کور ساتنه وکړه د کامیابۍ لپاره یې کار وکړه له امارت څخه د ځان په گټه کار وانخلې .

له بیت المال سره خیانت ونه کړې  د امارت له نامه نه غلطه استفاده ونه کړې همدا رامارت ده چې طالب او عالم یې نړۍ  ته وروه پېژانده همدا امارت ده چې طالب یې له د مسجد له حجرې څخه تر ارگ پورې ورساوه همدار امارت ده چې طالب ته یې د ملت د رهبرۍ کولو وړتیا ورکړه . له ډېرو کړاونو وروسته نن یو ځل بیا د هیواد په زیاته برخه ته حاکم یې ته باید د اولس دردونو ته ټکور او زخمونو ته پټۍ شې . ته باید په خپل ځان کې لوړ همت پیدا کړې ستا فکر باید تر گروف ، دلگۍ ، ولسوالۍ،  ولایت ، حتی تر ټول هېواد پورې منحصر نه وي . بلکې له تاسره باید د ټول اسلامي امت فکر وي ستا همت باید ډېر لوړ وي ته باید د محمد بن قاسم، صلاح الدین ایوبي ، سلطان محمود غزنوي، او داسې نورو اتلانو تگ لاره انتخاب کړې ستا د مهربانۍ تر سیورې لاندې باید ډېر ستړې اولسونه دمه شي . ستا شفقت او ښښنه باید دومره پراخه وي چې ډېر گناهگار هېوادوال پکې د خپلې گناه څخه د توبې چانس پیداکړي .

ته باید د غرونو په شان زغم ولرې هر چا ته باید په خپل څنگ کې ځای ورکړې هر طالب ته باید د خپل ملگرې په سترگه اوگورې.  څکه هغه ستا دعقیدې ستا د صف ستا د هدف او ستا دلارې ملگری ده. هدف مو یو ده رهبر مو یو ده بیرغ مو یو ده دښمن مو یو ده. او هر هېوادوال ته باید دخپلې کورنۍ د غړي په سترکه اوگورې دهغوی په غم او خوشحالۍ کې ځان شریک کړې . نو طالبه چې کله دې دا صفات په ځان کې پیدا کړه نو پوه شه چې فتحه ستا ده. کامیابي ستا ده. اولس ستا تر څنگ ولاړ ده . شهادت دې الله تعالی ته قبول ده . ستړیا لوړه تنده دې د ثواب زریعه ده . او که خدای مه کړه له دې صفاتو خالي یې نو بیا یې له دې کاروان سره ملگرتیا درته گټه نه لري خواري دې بې ځایه ده بیا د الله تعالی د نصرت هېله مه کوه .

نو بیا ستا لپاره غوره داده چې اول په خپل ځان کې د ا صفتونه پیدا کړې او بیا له دې کاروان سره ملگری شي . په دې هېله چې هرهېوادوال مو مجاهد او هر مجاهد مو فاتح او هر فاتح مو محمد بن قاسم صلاح الدین ایوبی او سلطان محمود غزنوي جوړ شي او په هېواد او نړۍ کې اسلامي نظام راولي . (وماذلک علی الله بعزیز

دوی ته دا روښانه شوه چې د آسیا په زړه کې میشت طالب او عالم نه یواځې دا چې د امت روحاني ترتیبت کولی شي بلکې دوی دامت رهبري هم کولای شي . دوی د یو هېواد نظام هم پرمخ بوولی شي . او دوی د نړۍ ټول خود ساخته نظامونه هم چلنج کولای شي . او په دې هم وپوهېدل چې طالب په هېڅ ډول زمونږ په شیطاني چالونو کې نه راگېر کېږي بلکې دوی یواځې او یواځې د خپل دین په رڼا کې خپله مبارزه په مخ بیایې.

د اسلامي امت هغه خونخوار ظالم او جابرفرعوني دښمن (امریکا ) یې په خالي لاس له پښو وغورځوله د دوی دوخت ولسمشر (اوباما) د طالب په وړاندې خپله ماته ومنله . د اسلامي امت ضد کفري ایتلاف (ناټو) عسکر یې په زېرو بوشکو په هواکې وخرخول ځکه نو طالب د اسلامي نړۍ اتل شو. ځکه نو د اسلامي امت هیلې پورې وتړل شوې ځکه هېڅ مغرور کبرجن فرعوني کافر ته یې د غلامۍ سر ټیټ نه کړ. خو طالبه ته څه فکر کوې ؟ دا چې ته له هغه حالت نه دې حالت ته راغلې آیا دا ستا د متو زور وو ؟ آیا تا په لکونو او زرگونو غښتلی فوج او پرمخ تللې وسلې لرلې ؟ آیا تا جنگي الوتکې ټانگونه او ډرون تیارې لرلې ؟ تا سره د هېوادونو اقتصادي او لوجیستکي مرستې وې ؟ نه دا هېڅ هم له تاسره نه وو بلکې دا  د دې لښکر د سالار مرحوم امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد (رحمه الله ) د ایمان ، غیرت ، اخلاص ، او قرباني برکت وه چې طالب په خالي لاس د کفري نړۍ

# شهید منصور د څو بُعدي شخصیت په توګه




حامـد(منصوري)

امیـــر المـــؤمنین شـــهید مـــلا اخترمحمد منصور د اسلامي امـارت پـه لیکـو کې هغـه مهـم شخصـیت و چې جهـادي جـامع شخصـیت یـې بیلابیـل اړخونه لرل.

شـــهید منصـــور رحمـــه الله د شـوروي اشـغال پـه مهـال د کنـدهار ولایـت لـه مهمـو جهـادي شخصـیتونو څخـه ګڼـل کیـدو، نومـوړی پـه کـال ۱۳۶۱ هـش کـې د جنـوب لویـدیځې حـوزې پـه کچـه د مشـهور جهـادي قومندان شهید قاري عزیزالله په جبهـه کې د شوروي اشغالګرو پـه جهاد پیـل وکړ چې پـه کنـدهار ولایـت کـې یـې د سره پـوځ پـر خـلاف پـه ډیـرو پـوځي عملیاتو کې فعال ګـډون کـړی او هغـه مهال لـه روسانو سره پـه مقابلـه کـې د مخامخ نښتې په ترڅ کې سخت ژوبل شوی هم دی.

امیـــر المـــؤمنین شـــهید مـــلا اخترمحمـد منصـور لـه هماغـو جهـادي تجربـو نـه پـه اسـتفادې سره د اسـلامي امارت په لیکو کې پـه پـوځي او نظـامي لحاظ د پاموړ خدمتونه تر سره کړل.

د طالبانو د اسلامي تحریک تر تأسیس او کندهار ولایت تـر تسخیر وروسته نومـوړی د کندهار ولایت د هوایي ډګر د عمومي مسؤل پـه حیث وټاکل شو چې پـه همـدې مسؤلیت سربیره ورته د هوایي ځواکونو او هوایي مـدافعې مسؤلیت هـم تفـویض کـړای شـو، د هغـه پـه تعقیب په کال ۱۳۷۵ کې د میزان په ۶ د پلازمینـې کابـل ترفتحې وروسـته د هـوایي چلنـد او سیاحت وزیـر وټاکـل شـو چې هلتـه هـم د دفـاع وزارت مربـوط د هـوایي مـدافعې عمـومي قومنداني ورته وسپارل شوه.

پـه ښـه توګـه د نومـوړي لـه لـوري د دوو پورتنیـو مسؤلیتونو لـه تـر سره کولـو څخـه دا جوتیږي چې نوموړي د ښه اداري او پوځي صلاحیت لرونکی شخصیت و.

ځکه د اسلامي امارت د تأسیس لـه پیلـه او بیـا تـر امریکـایي اشغال پـوري نومـوړي پـه همدې مسؤلیت پاتې، او همدا وزارت د امارت په اړونده تشکیلاتو کې تـر ټولـو مـنظم ، موفـق او په خپلو کارونو کې بریالی ارګان و.

شهید ملا اخترمحمد منصورچې په هغه مهال کې د هوانـوردي او تـوریزم پـه برخـه کې کوم فعالیت کړی هغه تر امریکایي اشغال وروسته جوړ شویو حکومتونو له خپلو ټولـو مـالي او تخنیکي امکاناتو سره نه دی کړی.

شـهید منصـور رحمـه الله د هـوایي چلنـد د وزارت پـه مهـال دملکـي هـوایي چلنـدد ښې رهنمایـي او د نـړۍ د نـورو هیوادونـو د ترانزیـټ پروازونـو د څـار او کنټـرول لپـاره د (ویسـت دستګاه) د افغانستان په بین المللي مشهورو هوایي ډګرونو لکه کابل، قندهار، ننګرهـار، مزار اوهرات کې ځا ی پر ځای کړه چې اوس هم بالفعل هغه دستګاوې مـورد اسـتعمال دي، اوهغـه مهال یې په میلیونو امریکایي ډالر د بهرنیو الوتکوله تیریدونه د ټکس په ډول د افغانسـتان بـو دیجې ته را تلل.

په دې سربیره شـهید منصـور رحمـه الله خـوا و شـا ۴۴ بیلابیلې ترانسـپورتي الـوتکې او جنګي چورلکې چې د داخلي جګړو پرمهال زیانمنې شوې وې له سره ترمیم او په ملکي هـوایي چلند او هوایي ځواک کې د استفادې وړ وګرځولې.

پر دې سربېره نوموړي د کابل، کندهار، بلخ، هرات، ننګرهار او کندوز ولایت هوایي ډګرونه له سره ترمیم او د کورنیو او بهرنیو الوتنو لپاره اماده کړل.

د امریکایي اشغال په وسیله د اسلامي امارت تر سقوط وروسته د یرغلګرو په مقابل کې د مقاومت د لیکو په بیا فعالولو او منظمولو کې هم د شهید منصور رحمه الله تر بل هرچا بارز و.

شهید منصور رحمه الله د امارت قیادت ته د یوه با اعتماده شخص په توګه هغه څوک و چې د یرغلګرو خلاف د مقاومت د احیاء او دوباره انسجام په برخه کې یې نه هیریدونکي خدمتونه وکړل.

له اشغالګرو سره د مقاومت په مهال کې یې هم بیلابیل مسؤلیتونه په ښه بریالیتوب تر سره کړل.

په کال ۱۳۸۹ کې چې کله د اسلامي امارت دواړه مرستیالان اسیران شول د امارت تأسیسي۔ مشر۔ ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله شهید منصور د امارت د مرستیال په حیث غوره کړ.

نوموړی د خپل خدای ورکړي استعداد له مخې په هماغو سختو شرائطو کې د اسلامي امارت پوځي، اداري او سیاسي فعالیت په داسې ډول رهبري کړ چې همدا کال خپله د امریکایانو په اعتراف د هغوی لپاره تر



ټولو خونړی کال و چې د هغوی ۷۰۰ تنه پوځیان د مجاهدینو لخوا په پوځي عملیاتو کې ووژل شول او په زرګونو نور یې ټپیان شول.

همدا خونړی کال و چې امریکایان او افغانستان ته راغلي ټول بهرنیان یې مجبور کړل چې ۲۰۱۴ کال له افغانستان څخه د پرشاتګ کال اعلان کړي.

د اسلامي امارت د تأسیسي مشر د وفات له ویرجنې پیښې سره د شهید منصور رحمه الله حکیمانه چلند بله هغه هغه تاریخي کارنامه وه چې د اشغالګرو په مقابل کې د مقاومت لیکې له هرډول تشتت څخه خوندي وساتلې.

د امارت د رهبرۍ لپاره د شهید منصور انتخاب چې د اسلامي امارت د عالي شورا د غړیو په اکثریت تر سره شو د مقاومت د پرمختګ لپاره یو بل جهادي اقدام و چې د ترسره کیدو امتیاز یې هم شخصا اروابښاد منصور صاحب ته راجع دی.

دا مهال چې امریکایانو او ناټو په پوځي لحاظ د مجاهدینو په مقابل کې شکست خوړلی و ایجاب کیده چې د مجاهدینو دا پوځي بریا د هغوي په دیپلوماتیک فعالیت کې ښه منعکسه شي، هماغه و چې شهید منصور رحمه الله د دې کار لپاره هم ښه نوښتونه په کار واچول، له ډیرو بهرنیو هیوادونو سره یې ارتباط قائم او هغوی یې د اشغال په خلاف موقف نیولو ته تیار کړل.

خو دا چې د شهید امیر المؤمنین د قیادت دوره ډیره لنډه او له بیلابیلو ستونزو ډکه وه نو د ده په شهادت سره د نوموړي ټول سیاسي او دیپلوماتیک فعالیتونه ډیر متأثر شول.

خو شهید منصور رحمه الله د جهادي مقاومت د مداوم ساتلو لپاره داسې کسان روزلي چې په پوره اخلاص او صداقت سره به د ده لاره تعقیبوي او د الله تعالی په نصرت به یې نیمګړي آرمانونه پوره کوي.

اوس چې د بهرنیو یرغلګرو او دهغوي د ملاتړو په خلاف منصوري عملیات دوام لري دا هم د شهید منصور رحمه الله د جهادي فعالیتونو د تداوم تسلسل دی چې ان شاء الله تر هغو به دوام لرې ترڅو مو ګران هیواد د ټولو خارجي اشغالګرو له اشغاله خلاص او د اسلامي حاکمیت په واکمنۍ اباد شوی نه وي.

ان شاء الله و ماذلک علی الله بعزیز

# د اردو عسکر ته !!

فرهاد اتل

ځو ورځې د مخه مې په یو کلیپ کې ولیدل چې داردو یو بریتورعسکر ویل:

مونږ ټانګ لرو، مرمۍ لرو، مهمات لرو، خو ایمان نلرو، ځکه پرمختګ نشو کولی او په طالب برۍ هم نشو مندلی!!

ځو ورځو تیریدو باوجود دهغه بریتور عسکر دخبرو او الفاظو تاثیر زما دذهن په لوحه هغسې- لا نقش پاته دی او تړی نه محوه کېږي... اوپه اړه یې چرت وهلو کې ډوب یم ، کله نه کله له ځان دهغه عسکرنه اوپوښتم چې ایمان نلرېبیا ولې دطالب پر ضد جنګ ته راوتی یې؟ولې دطالب دحق جهاد او دهغه دبري په مخکې خنډ یې؟

که کوم طالب یا مجاهد دا ویلي وای چې داردو عسکر هرڅه لري خو ایمان نه؛ شاید دومره تا ثیر او اغیز به یې نه وا؛ څومره چې ددغه عسکر ویل چې دجنګ په لومړۍ کرښه کې ناست دی لري یې! رښتیا هم هیښونکې ده...

ډیرخلک وایي طالب ولې جنګ کوي؟ ولې دملي اردو عسکر چې افغانان دي وژني؟ هغوی خو دیوې مړۍ ډوډۍ مندلو لپاره ټوپک غاړې ته کړی او داسې نور....

هرچې ده داخبره چې طالبان ولې جنګوي؟ ګورئ دطالبانو جګړه خدای مکړه دافغانانو خلاف او دهغوی دوژلو لپاره نده، طالبان وایي: زمونږ وطن صلیبي امریکا اشغال کړی دی، او داسلام حکم دادی چې هر کله یو هېواد کافر اشغال او قبضه کړي دغه هېواد په وګړو باندې جهاد فرض عین ګرځي! طالب ددې شرعي حکم دپوره کولو لپاره خپلې دسر وینې په لاس کې نیولې او دامریکا یانو دتیري په مقابل کې جهاد کوي! طالبانو دهیڅ افغان خلاف جنګ یا جهاد ندی اعلان کړی هغوی یواځې او یواځې دامریکایانو او دخارجي یرغلګرو په خلاف جهاد پیل کړی

هو!داردو عسکره تا دامریکایانو په دفاع کې دطالبانو خلاف وسله راپورته کړې! هم دا ستا ټوپک دی چې په امریکایي دطالب دبرید مخه ټپ کړې، که ته دامریکا ددفاع او ملګرتیا لا س واخلې په هم هغه ورځ طالب داجنګ ګټلی او امریکایي ماته کړې! او هم به دا وطن وطن ازاد وي

دانن چې امریکایان زما او ستا په وطن کې څومره ظلمونه کوي داټول ستا په مرسته او ستا په کومک سره کوي ! او ته ورسر ددې ټولو په وبال کې کې شریک یې!

داردو عسکره! تا ددې په ځای چې دوطن او دین ددفاع لپاره جهاد کړی وای لګیا یې دوطن ددفاع ستنې نړوې ، دوطن دازادۍ مجاهدین شهیدانوي اوته پوهیږې چې ستا داکار څومره لوی جنایت او خیانت دی؟ دشک پرته ته دڅوناچلو پیسو په بدل کې دکفر دغلبې لپاره جنګیږې، باور وکړه ستا په دې مجرمانه عمل سره کفر غالب کېږي او اسلام مغلوب ....

غوږشه! په دوه حالتونو کې مسلمان لپاره دمسلمان وژل روادي یعنې پرضد یې وسله پورته کول روا دي یوچې کله مسلمان دکافرانو په پوځ او اردو کې ګډون وکړي او دا انګیزي چې زما کار یواځې جنګ دی، که راته په مخکې مسلمانان راځي او که بل څوک ، ماته وربانديې توره پورته کول روا دي او هیڅ ډول ګناه یې نه بولم!یادا وایي: چې زه دپردیو عسکر او دهغوی غلام یم ! ما دهغوی نمک خوړلی، ماته چې امریکایان هر حکم کوي هغه به سرته رسوم که راته دکوم مسلمان - طالب دوژلو حکم هم کوي ... کوم باک نلري... په دغسې صورت کې دمسلمانانو اجماعي فتوا او پریکړه داده چې ته حتمي او قطعي کافر شوی یې یعنې ته دیو داسې کفر مرتکب ګرځیدلی یې چې په سبب یې داسلامي ملت څخه بیرون شوی یې ! ته هیڅکله دهغه سلوک وړ او حقدار نه یې دکوم چې نور مسلمانان دي

بل کله چې یو مسلمان ستا پشان داردوعسکره! دکافرانو سره یوځای شي دهغوی دبریاوو لپاره جنګیږي او یا دکافرانو سره اعانت کوي چې کله دامریکایانو او طالبانو ترمنځ جنګ راځي، ستا پشان دامریکایانو سره ملګری کېږي دغه صورت دجرم او کفر نهایي صورت دی دایمان او اسلام دوژلو داسې حالت دی چې ددینه دزیات کفر او کافر کیدو نور تصورنشته

په دنیا کې هرډول ګناهونه، ناروا وې او ټولې نافرمانۍ چې دیو مسلمان څخه کېږي یا یې کول په سوچ کې راځي! هغه ټولې ستا ددې جرم په وړاندې هیڅ دي ولې تا په ښکاره داسلام ددښمنانو سره داعانت او کومک ارتکاب کړی دی چې دا دعلماوو په اتفاق دصریح او قطعي کفرارتکاب ته ورته عمل دی

بنأ ستا داخبره چې وایي: ټانګ لرو، مرمۍ لرو، مهمات لرو خو ایمان نلرو رښتیا ده اسلام هیڅکله دکافرو سره دمحبت یوه وړه سلنه هم روا بولي نه !اوبیا څه داچې ستا پشان شپه ورځ داسلام او مسلمانانو سره دکفر ددفاع او غلبې لپاره جنګېدل دې حرام ونه بولي ...

ښه داده چې ځان دکفر ددفاع او غلبې لپاره اونه وژنې، دمسلمانانو په خلاف دکفارو داعانت او مرستې نه کینه اوپخپلو ټولو اسلام ضد جنایتونو توبه اوباسه اوس هم لافرصت لري چې پخپلو کړو وړو پیښمان شې او دامریکایانو په ملګرتیا او دفاع کې خپلې وینې اونه بهوي ..... هو! دامریکا په دفاع کې....

# د امام أبوحنيفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ تقوی)

وما استظل بحائط المدیون حين أتاه متقاضيا) د امام صاحب رحمه الله به چې په چا قرضه باندې وه نو چې كله به د قرضي د مطالبې لپاره ورغی ، نو د هغه د دیواله سوري ته به نه کیناسته، لمر ته به ولاړ وو ،له ده مبارک نه چا پوښتنه وکړه چې ولي د دېوال سوري ته نه دریږي؟

ده ورته وویل : چې حدیث شریف ده (کل قرض جر نفعا فهو ربا) هر هغه قرض چې فایده ورباندي واخیستل شي هغه سود ده ،نو داسې نه چې زه دده د دیوال په سوري فایده واخلم او په سود کې واقع شم.

(مناقب امام ابی حنیفه رحمه الله)

# Srak Magazine

## شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور (نورالله مرقده) ...

څلور ستر قایدانه صلاحیتونه ډیر کم په یوه شخص کې جمع کیږي: حلم، شجاعت، جوادت او غوره تدبیر. شهید منصور رحمه الله پر یوه وخت د اڅلور واړه صفات لرل.

منصورر رحمه الله هغه مخالف ته هم کورته ورته چې دی به یې په بدو نومونو ښکانځه؛هغه به تل د سختو پیښو او خطرونو پروخت ارام او مطمئن ښکاریده او ټولې شورا ته به یې ویل چې تاسو ځانونه وساتئ زما د مرګ او اسارت هیڅ فکر مکوئ!

هغه به مجاهدته دخپلې خولې ګوله ورنیمی کوله اودشهیدانوکورنیو او یتیمانوته یې جلا مالي بودیجه ساتله.

او د طالب غورځنګ دغه د بخت ستوری په داسي وخت کې وځلید چې په سیمه،نړۍ او داخل کې د طالب غورځنګ د خپل منځي تقسیم،کمزوري کولو او له مینځه وړلو ته په لویه پیمانه استخبارتي اتحادونه شوي و، خو شهید منصور همدغه ستر اتحادونه په خپل تدبیر ناکامه او کمزوري کړل.

